

# توره بوره

درې میاشتنۍ

يوولسم کال لومړی، پرله پسې اته دیرشمه گڼه، حمل، ثور، جوزا ۱۳۹۲

د دې هېواد او اسلام دښمنان غواړي، چې دا په معادنو ډک وطن، دا توريالی قام، دا په دين مين ملت له پښو وغورځوي او پرېږدي چې مخکې لاړ شي او نړۍ ته د اسلامي مشعل وړانګې خپرې کړي.

د محترم خالص بابا رحمة الله عليه له وینا وو څخه




## د برما مظلوم مسلمانان...



## اوضاع جهادی ولسوالی وردوج ...

## د مصر غمیزه او د خلاصون لار





## امريکا ته د غرب پلوه علماؤ خدمت



## طالب د اسلامي امت شريکه تکیه



## ولې ژورنالیستان بې طرفه ندي؟



عن أبی هریرة أن رجلا قال : یارسول الله علمنی عملا أنال به ثواب المجاهدین فی سبیل الله فقال : (( هل تستطیع أن تصلی فلا تفتر وتصوم فلا تفطر؟ )) فقال : یارسول الله أنا أضعف من أن أستطیع ذالک ثم قال النبی صلی الله علیه وسلم : (( فوالذی نفسي بیده لو طوقت ذالک ما بلغت فضل المجاهدین فی سبیل الله أما علمت أن فرس المجاهد فی سبیل الله لیستن فی طوله فیکتب له بذالک حسنات ))

ترجمه: ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دی چې يو سړي وويل: ای دالله پيغمبره ! ما ته يو داسې عمل راوښيه چې دالله په لار کې د مجاهدينو ثواب پرې وګټم هغه وفرمايل: (( ايا کولی شې چې تل لمونځونه کوې او نه يې پرېږدې او تل روژې نيسې او نه يې ماتوې ؟ )) هغه وويل: ای دالله پيغمبره زه خوددې وس نه لرم چې دا کار وکړم نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وويل: (( زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما ځان دهغه په لاس کې دی ، که ددې وس هم ولرې دالله په لار کې د مجاهدينو فضليت ته نه شې رسېدی ، ايا ته خبر نه يې چې دالله په لار کې د مجاهدينو اس خپل پړي کې ځرخيږي هم الله تعالی ورته په دې نيکی ليکي ؟ )) روواه البخاری ومسلم

دتوره بوږه جهادي مجلې درنو لوستونکو او مينه والو، دځينو ستونزو له امله زموږ دا ګڼه له خپل ټاکلي وخت نه ډيره وځنډيده هيله ده چې معذرت مو ومنی او دخو مياشتو جهادي تنده مو په دې ګڼه ماته کړی، ستاسې د هر راز همکارۍ په هيله .اداره

دري میاشتنۍ

# توره بوره

خپلواکه، اسلامي، جهادي او ملي خپرونه

یوولسم کال لومړۍ ګڼه، پرلپسې اته دېرشمه، حمل، ثور، جوزا، ۱۳۹۳هـ، ش.

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سرمقاله | |
| ۲ | د مصر غمیزه او د خلاصون لار | ۲ |
| ۳ | امریکا ته د غرب پلوه علماوو... | ۴ |
| ۴ | حضرت سعد رضی الله عنه | ۷ |
| ۵ | جهاد اکبر او جهاد اصغر | ۹ |
| ۶ | د خوښیو امتحان | ۱۳ |
| ۷ | د افغانستان تجزیه د منلو نه ده | ۱۷ |
| ۸ | د شهیدانو کاروان- حامد لالا | ۲۰ |
| ۹ | د برما مظلوم مسلمانان او... | ۲۳ |
| ۱۰ | هندو سفیر د ډیموکراسۍ بله... | ۲۶ |
| ۱۱ | مجاهدې ولولې | ۲۹ |
| ۱۲ | (اسلامي روح) د حکمرانۍ... | ۳۳ |
| ۱۳ | ولې ژورنالیستان بې طرفه نه... | ۳۶ |
| ۱۴ | اوضاع جهادی ولسوالی وردوج | ۳۸ |
| ۱۵ | طالب د اسلامي امت شریکه... | ۴۱ |
| ۱۶ | په زړه پورې کیسه | ۴۳ |
| ۱۷ | د ام المؤمنین زینت بن جحش... | ۴۵ |
| ۱۸ | د شهیدانو کاروان... | ۵۲ |
| ۱۹ | سوله په اسلام کې ده نه په... | ۵۶ |
| ۲۰ | د نارینه او د ښځې د ګډ کار... | ۶۱ |
| ۲۱ | د ترکستان شپې (تاریخي ناول) | ۶۴ |

مؤسس:
غازي اجمل
د امتیاز څښتن:
توره بوره فرهنګي اداره
مسؤل مدیر:
مبارز افغان
Tooraboramujalla@gmail.com
کتنپلاوي:
ابوعمر، ذاکر ادیب، پوهندوی دیدار
کمپوز او ډیزاین:
فقیر محمد فهیم
بیه:
افغانستان: ۲۰ افغانۍ
پاکستان: ۳۰ کالدارې
تیراژ: ۱۵۰۰ پینځلس سوه

یادونه:

*- په توره بوره کې خپاره شوي مطالب د لیکوال خپل نظر څرګندوي، د ادارې توافق ورسره شرط نه دی.

*- ټولو هغو لیکوالو ته چې د پردیو تر اغېز لاندې نه وي راغلي اسلامي او ملي فکر ته ژمن وي، بلنه ورکوو چې خپلې لیکنې په دري او پښتو ژبه ادارې ته راولېږي.

*- ستاسو نیوکو او نیکو وړاندوینو ته سترګې په لار.





بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# یوه هیله او یو هدف

په نړۍ کې هر څوک د فرد یا ټولنې په توګه ستړیاوې او سربښندنې پر ځان مني، حتماً د یو عالي او لوړ هدف د ترلاسه کولو په موخه، موږ وینو ډیر د حق او باطل ځواکونه د ژوند په مختلفو میدانونو کې درانه مالي او ځاني زیانونه ګالي، خو هر څوک ځانګړې هیلې، اهداف او ارمانونه په مخ کې لري، چې دغه سربښندنې د هغه پر وړاندې ناچیزه او کمې ګڼي، خو بیا ځینې وخت داسې هم وینو چې له کلونو کلونو ستړیا او سربښندنو وروسته ځینې حرکتونه د خپلو نیمه اهدافو او حتی د خپلو اهدافو د عشر او معشار په ترلاسه کولو هم بسنه کوي او داسې تنازلاتو ته قانع کیږي چې د ټاکل شوو هیلو او اهدافو بوی هم په کې نه محسوسیږي، د عقل خاوندان په داسې حرکتونو قضاوت کولای شي چې یا خو یې ټاکلي اهداف دومره لوړ او عالي نه وو لکه څنګه یې چې رنګ او روغن ورکړی و، او یا خو اهداف پخپل ځان کې د قدر او درنښت وړ دي، خو دوی دي چې له خپلو اهدافو او ټاکلو موخو یې مخ ګرځولای، چې په دیني اصطلاح ارتداد او په عامه اصطلاح انحراف تعبیریدای شي.

یوازې او یوازې د اسلام لخوا ټاکل شوي سپیڅلي اهداف دي چې مسلمان په هغې کې د تنازلاتو او ترمیمونو حق نه لري؛ چې یو له دغو اهدافو د اسلامي نظام حاکمیت دی، د اسلامي ټولنې غړي په دې مکلف او مؤظف دي چې په رښتینې توګه د اسلامي نظام( اسلامي خلافت) د رامنځ ته کولو لپاره زیار او زیان پر ځان ومني او هیڅکله به هم په دې هدف سود او سودا نه کوي.

اوس چې په نړیواله کچه د اسلامي خلافت د رامنځ ته کولو په هیله کومه بیداري رامنځ ته شوې ده، وینو چې د نړۍ په بیلابیلو برخو کې د همدې هدف د شعار ګرځولو سره سیاسي او عسکري حرکتونه پیل شوي، ډیری ځوانانو او پیغلو د خپلو سرونو، مالونو، عزتونو، دنیوي لذاتو او واکمنیو په قربانۍ سره د دې هدف د ترلاسه کولو په خاطر د جګړې میدان تود ساتلی، افغانستان هم د نړۍ د یوې فعالې برخې په توګه د دې نړیوال حرکت په لومړۍ کرښه ولاړ دی، د





اسلامي امارت او اميرالمؤمنين له وياړه ډک نوم نه د همدې ملت په برخه شول، چې عربو او عجمو، سپينو او تورو پرته له کومې نزاع دغه وياړونه د افغانانو بللي او د بيعت لاسونه يې ورکړي دي.

د افغانستان غيور او مجاهد ملت هم د دې ستر امانت د ساتنې په هيله درنې قربانۍ او سربښندنې پرځان منلي او مني يې؛ اوس چې په هيواد کې يرغلگرو او د هغوی بريڅو ماتې په زړه منلې، د مقاومت او جگړې ميدان يې بايللی، غواړي په يوه نه يوه توگه موږ له خپلو اهدافو کاږه او منحرف کړي، دوی د خپلو تبليغاتي کړيو لخوا په بېلابېلو لارو دغه پروسه مخ ته وړي.

دا چې کله نا کله دا خبرې راپورته کيږي چې فلان او بستان د امريکايانو سره د امنيتي تړون د لاسليک پرسر موافقه نه کوي، دا کار د افغانانو لپاره د يوه زيري او هدف ته د رسيدو په توگه تعبيريږي او هغه څوک چې د امريکايانو سره تړون نه لاسليک کوي د هغوی د غلامۍ لپاره يې برأت گڼي، او فکر کوي چې که هغوی د غلامۍ ځنځير په غاړه وړي هغه خير، خو دا توره يې چې په اصطلاح امنيتي تړون نه لاسليک کوي ستر جهاد او د مسلمانۍ نښه ده، دا ډيريو بې ځايه تحليل او تخمين دی، زموږ د کلونو کلونو سترې او ستومانه مبارزه، د سرونو، مالونو او عزتونو قربانۍ د دې لپاره دي چې کفر رانسکور او په رښتينې توگه اسلامي نظام حاکم او واکمن شي، د تړون نه لاسليک کول نه دومره ستره بريا ده او نه هم زموږ د اهدافو يوه مهمه برخه؛ که تړون لاسليک هم نشي چې بې ديني حاکمه او مسلمانان محکوم وي، جهادي بهير به پر مخ درومي ان شاءالله

همدغه راز د امريکايانو وتل هم زموږ يوا ځينې هدف نه دی، بلکې زموږ د هدف يوه برخه ده، يوا ځې يرغلگرو تيښته د قضيې حل گڼل ستره غلط فهمي ده، بين الافغاني تفاهم، مذاکرات او د سولې هڅې هم هغه شعارونه دي چې دښمن غواړي له دې لپاره زموږ اهداف زموږ څخه ورک کړي او موږ له خپلو اهدافو منحرف او خدای مه کړه د ارتداد په لوري سوق کړي.

مونږ [مجاهدين] بايد متوجه اوسو چې زمونږ هدف کاملا د کفري نظام ړنگيدل او پر ځای يې په غير له اختلاف په پوره توگه ديو ريختيني اسلامي نظام قيام دی او نور [دښمن] هم بايد په دې پوه شي چې د تړون نه لاس ليک يا د يرغلگرو وتل د روان جهاد د رکود او سقوط په معنی نه دې

حسبنا الله ونعم الوکيل

# د مصر غمیزه او د خلاصون لار

اجمل

مصر پیژندنه:
مصر یو اسلامي عربي هیواد دی چې ټول وګړي يې په عربي ژبه خبرې کوي؛ د افریقا د لویې وچې د شمال په یوه برخه کې موقعیت لري.
ځمکنی مساحت يې څه د پاسه لس لاکه ۱۰۰۰۰۰۰ کیلومتره مربع اټکل شوی. مصر د اسلامي نړۍ یوه نه بیلیدونکې برخه ده چې د سوډان، لیبیا، فلسطین او اسرائیلو سره ننښتي سرحدونه لري، د تاریخي لحاظه په قدیمه اثارو یو غني هیواد دی، یوه اوږده تاریخچه او لرغوني تاریخي قدامت لري، چې د موسی علیه السلام او فرعون تر زمانې لا هم د مخه اثار په کې خوندي دي.
د نفوس له لحاظه په افریقایي هیوادونو کې تر ټولو ستر هیواد دی چې د وګړو شمیره يې تر ۹۰ میلیونو پورته اټکل شوې، مصر دافریقا او آسیا د وصل مهمه نقطه ده او همدغه راز د غرب یعنې اروپا او آسیا په منځ کې موقعیت لري، چې د تجارت او جګړو په مهال تجارتي او جنګي بیړۍ د سویس د تاریخي بندرګاه نه تیریږي.
مصر دی چې سره بحیره او هندي بحري محیط بحیري يې سره نښلولي او بلاخره خلیج بحر ته له همدې لارې ځان رسولی شي، چې اسلامي نړۍ او په ځانګړې توګه عربي هیوادونه ترعسکري او تجارتي اغیز لاندې راولي.
د سینا د لویې دښتې یوه ستره برخه په مصر کې واقع ده چې سینا هم د پخوا څخه د هجرتونو او هم د استعماري ځواکونو د لارې په توګه ځانګړې اهمیت لري، په آسیايي هیوادونو د تسلط لپاره په سیمه کې د اسرائیلو جنایات او په اسلامي ځمکو د هغوی ظالمانه تسلط په ځانګړي توګه د بیت المقدس تهدیدول هغه څه دي چې په ټوله اسلامي نړۍ يې مخه نیول فرض دي، خو دا چې اوس مهال دغه مقدس جهاد ته د فلسطین او ورسره نږدې سیمو مسلمانانو سینه وهلې، دې ته اړتیا لري چې د مصر په څیر یو ستر او ځواکمن هیواد يې ملاتړ وکړي، که نور هیڅ نه وي د هجرت غیږه خو ورته پرانیزي.
خو بدبختانه د مصر واکمنو نه خو د فلسطیني ولس د ګاونډیتوب حق ادا کړ او نه يې د یو اسلامي هیواد په توګه د فلسطین په مسئله کې ځان شریک وګانه، د مصر د پوځي او سیاسي واکمنانو غلطو پالیسیو په سیمه کې د اسرائیلو د پراختیا او په عربي ځمکو د هغوی د واکمنۍ لپاره لاره هواره کړه.
کله چې د مصر اتیا سلنه ٪۸۰ خلکو د اخوان المسلمین اسلامي حرکت ته د حکومت رایه ورکړه، نو د ټولو هغو مسلمانانو د امید هیلې راوټوکیدې چې د

فلسطین (بیت المقدس) په مسئله کې د مصر د کردار په اهمیت پوهیدل، او داسې انګیرل کیده چې اوس به نو د فلسطین د مسلمانانو لپاره یو څه د سکون او راحت لاره برابره شي، او د اسرائیلو په شا تمبولو کې به هم چانسونه په لاس ورشي، خو د امریکا او اسرائیلو په مستقیمه مداخله د اخوان المسلمین حکومت را و پرځول شو او د اسلامي امت په یوه بله نه بیلیدونکې برخه کې نوې غمیزه اغازه شوه.

په یوه ورځ کې تر دریوو زرو مسلمانان په خپلو وینو کې رنګ ، سیاسي او حتی انساني حقوق یې تر پښو لاندې شول، د مصر غمیزې یو ځل بیا اسلامي امت د غم په تغر کیناوه، غربي ښکیلاک په دې پوهیده چې که په مصر کې د اخوان المسلمین واکمني ټینګه شي نو د اسرائیلو د پرمختګ مخه به ډب او په سیمه کې د غربي استعمار د هځو مخې ته به یو لوی خنډ شي، نو ځکه یې د لږ وخت لپاره هم تحمل نکړای شوه.

د مصر غمیزه که اسلامي هیوادونه یوازې د مصر مسئله بولي نو دا به یوه لویه اشتباه وي، په مصر کې روانه وضع، په زرګونو مسلمانانو د اعدام حکمونه او په مصر کې د اخوان المسلمین د حرکت د له منځه وړلو هڅې هغه څه دي چې په ژوندانه له اسلامي امت څخه د اندامونو په غوځیدا تعبیریدای شي.

او که په مصر کې د اخوان المسلمین د له منځه وړلو دا هڅې خدای مه کړ بریالۍ شي، نو بیا به د تیر په څیر نه بلکې تر هغو به بدتر د اسرائیلو او غرب لاسپوڅی نظام په مصر کې حاکم شي، چې دا به د ټول اسلامي امت خصوصاً د فلسطین او بیت المقدس موضوع ته دردوونکی تهدید وي.

اوس نو باید ټوله اسلامي نړۍ په سیاسي، اقتصادي او نظامي ډګرونو کې د مصر د اخوانیانو تر څنګ ودریږي، او پخوا له دې چې اوبه له ورخه تیرې شي د دې غمیزې چاره دې وکړي.

---

مال د خپل ژوند د آسانه کولو لپاره دی، خو ژوند د مال د راغونډولو لپاره نه دی، له یو هوښیار څخه چا پوښتنه وکړه، نیکمرغه کوم یو دی او بدمرغه څوك دی، هغه ورته وویل : نیکمرغه هغه دی چې ویې خواړه او ویې کرله (خلکو ته یې ورکړه) بدمرغه هغه دی، چې مړ شو او ترې پاتې شوه.

***

موسی علیه السلام قارون ته د نصیحت په توګه وویل:

احْسِنْ كَمَا اَحْسَنَ اللّٰهُ اِلَيْكَ

ښه کوه لکه الله تعالی چې له تا سره ښه کړي، مال او دولت یې درکړی دی، خو قارون د موسی علیه السلام نصیحت ته غوږ نه شو له پای څخه خو یې تاسو ټول خبر شوي یاست، چې ځمکې ښکته ډوب کړ.

***

دوه کسانو رنځ وګاله خو څه ګټه یې ونه کړه، یو هغه چې راغونډه یې کړه او خرڅ یې نه کړه، دویم هغه چې زده کړه یې وکړه، خو عمل یې ورباندې ونه کړ.

***

علم خو د دین د ساتلو لپاره ترلاسه کېږي، نه هم د مال د خوړلو لپاره.

***

بې تقوی عالم د هغه ړوند په بڼه دی، چې مشال یې په لاس کې وي نور خلك یې له رڼا ګټه پورته کوي، خو دی هېڅ ګټه نشي ځینې اخیستی.

***

د هېواد ښکلا د هوښیارانو په لاس کې ده او د دین ښکلا د پرهېزګارانو سره ده، په حقیقت کې واکمن هوښیارانو ته ډېره اړتیا لري، هوښیاران واکمنو ته هېڅ اړتیا نه لري.( سعدي)

# امریکا ته د غرب پلوه علماوو خدمت

انجنیر عثمان

اول: په افغانستان کې د دیني علماؤ په حیث د ډیموکراسي منل، او له یوه سیکولر ډیموکراتیک حکومت سره حساسیت نه ښودل.

دوهم: د ځوانانو او عامو مسلمانانو له ذهن څخه د جهاد، قتال، ولاء او براء (د الله جل جلاله لپاره له چاسره دوستي او دښمني کول) د مفاهیمو ویستل او خلکو ته دا خبره تلقینول، چې جنګ او توپک افغانستان وران کړی دی، نور باید له نړیوالې ټولنې سره د وطن په ابادولو کې لاس یو کړو او هم خلکو ته دا تبلیغات کول چې طالبان او مجاهدین د فلاني فلاني جهت ایجنټان دي او هیڅ افغاني اجندا نه لري، نو باید د هغوی خبره و نه منل شي.

له جهاد او قتال څخه د خلکو را ایسارول یو لوی منافقت او د امریکایانو د هدف پوره کول دي، چې دغه ډول ډیموکرات علماء یې په ډیره بې شرمۍ سره ترسره کوي.

دریم: د شکوکو او شبهاتو په خپرولو د حقیقي علماؤ د دعوت پر وړاندې خنډونه را ولاړول، د مثال په ډول ځوانانو ته دا ویل چې د جهاد لپاره د متفق امیر شتون او د بیرغ یووالی شرط وي چې اوس په افغانستان کې نشته، نو په همدې بنا په اوسنیو شرایطو کې جنګ شرعي جهاد نه، بلکې د وطن ورانول دي.

خو دوی د نفاق له مخې له خلکو دا خبره پټه ساتي چې یاد شوي شرایط په جهادِ طلب یعنې هغه جهاد کې چې مسلمانان یې د کفارو په خاوره کې کوي ضروري دي، اوس خو په افغانستان کې دفاعي جهاد دی چې پر ټولو افغانانو د لمانځه په څېر فرض دی.

څلورم: په اسلامي نړۍ کې د غرب یو لوی هدف دا دی چې څنګه مسلمانې ښځې له کور څخه بهر راوباسي او هغه موانع او بندونه مات کړي چې د ښځو او نرو ترمنځ د اختلاط مخ نیوی کوي، په دې لاره کې غرب په تدریجي ډول سره حرکت کوي او ټول ممکنه وسائل په کار اچوي، که څه هم چې ځینې به یې اسلامي بڼه هم ولري، لکه په ۲۰۰۹ م کال د ۷ میاشتې په ۴ تاریخ چې د امریکا P R T د کونړ په مرکز اسعدآباد کې د یو لک او اتیازره ډالرو په مصرف خاص د ښځو لپاره د یوه مسجد بنسټ کېښود، ډیره د تعجب خبره ده چې امریکا دې طالبان، عالمان، په مساجدو کې په لمانځه ولاړ مسلمانان په بمباردونو کې وژني، خو د هغوی ښځو

او خویندو ته دې بیا په ښارونو کې له خپلې جنګي بودیجې څخه ځانګړې مساجد جوړوي.
دغه ډیموکراسي پلوي علماء د دیني غونډو، تعلیمي محافلو او تربیوي اجتماعاتو په نامه په زرګونو مسلماني خویندې او میرمنې له کور څخه د باندې را وباسي، په پارکونو، د ښارونو په عیدګاوو او لوبغالو کې ورته د راجمع کېدو فرصتونه برابروي.
دا کار که څه هم چې د دین په نامه ترسره کیږي، خو په حقیقت کې هماغه د غرب د اجندا پوره کول دي چې د مسلمانو میرمنو له کوره د باندې ویستل غواړي. د اسلام په تاریخ کې مسلمانو علماؤ ددعوت دغه ډول اسلوب ښځو ته د دین ورزده کولو لپاره نه دی غوره کړی او نه هم دا د اسلام له عمومي روح سره سمون لري چې د ښځو لپاره یې کورونه تر مساجدو هم د عبادت لپاره غوره ګرځولي دي.
د رنډ کارپوریشن( امریکایي اسلام ) اومه ماده په اسلامي هیوادونو کې د غیر اسلامي هیوادونو او ولسونو دتاریخ او تمدن د معرفي کیدلو خبره کوي او بیا په خاص ډول توصیه کوي چې د (ماقبل اسلام ) دزماني تاریخ دې مسلمانانو ته معرفي شي، تر څو هغه خپل تاریخ وګڼي او هغه ته د خپل ځان منسوبولو افتخار وکړي.
په دې هکله ګوډاګي حکومت تر اوسه په پراخه پیمانه د ښوونځیو په کتابونو کې له دې ویرې پراخ تغیرات نه دي راوستلي چې د افغانستان په کلیو او ولسونو کې لا تر اوسه اسلامي احساس ژوندی دی او ډیرې سیمې داسې دي چې حکومت ورباندې تسلط نه لري، خو همدغه کسرېې د میډیا او مطبوعاتو له لارې پوره کړې دی.
په دې ډول ګڼ شمیر تلویزیونونه او راډیوګانې چې د پردیو لخوا تمویلیږي او سیکولر افغانان یې چلوي، شپه او ورځ افغانانو ته د غرب او هندوانو تاریخ او فرهنګ وړاندې کوي.
دا چې د دغو تلویزیونونو چلوونکي د هغو غربیانو لخوا استخدام شوي چې د افغانستان اوسنی ګوډاګی حکومت یې هم جوړ کړی ،نو ځکه د اطلاعاتو او کلتور پخواني وزیر عبدالکریم خرم و نشو کولای چې ځینې تلویزیونونه له هغو نشراتو منع کړي، چې د افغانانو له دین ، فرهنګ، اخلاقو او ملي ارزښتونو سره په تضاد کې دي.
همدا ډول هغه سیکولر لیکوالان او څیړونکي چې له اسلام او اسلامي تاریخ سره کینه لري، کوښښ کوي چې خپلې لیکنې په افغانستان کې له اسلام څخه د مخه زماني تاریخ او ادیانو لپاره وقف کړي، تر څو وکولای شي خلکو ته دا تلقین ورکړي چې، اسلام او اسلامي تمدن د افغانانو په تمدني ژوند کې یو خاص عارضي شی دی چې د فاتحینو په زور دلته راغلی دی او د دغو اصالت په( آریائیت)(زردشتیت)(مزدکیت) او ( بودایت ) کې دی، له همدې امله ورته بودا پورې تړلي اثار او د تیرو پخوانیو ادیانو بقایا ډیر د اهمیت وړ دي، د هغو په هکله په سلګونو مقالې په ( دایرة المعارفونو ) او نورو مجلو کې چاپوي او له دې لارې هڅه کوي چې خلک له اسلام څخه په مخکې زمانې پورې وتړي.
د رانډ کارپوریش( امریکایي اسلام ) د پلان اتمه

برخه په اسلامي نړۍ کې د سیاسي پلورالیزم او مدني ټولنې، سیاسي احزابو او تنظیمونو د رامنځته کولو توصیه کوي او د ولس عام خلک سیاسي اجرأتو کې فعال مشارکت ته رابولي، دغه توصیه چې په حقیقت کې د اسلامي ټولنې د ټوټه کولو او بې شمیره ګوندونو د ویشلو یوه دسیسه ده په افغانستان کې هم په ډیر مهارت سره عملي شوه.
د امریکا له راتګ وروسته افغاني ټولنه چې لا د اتو یا نهو احزابو د تفرق او منازعاتو له بلا څخه خلاصه شوې نه وه او نه یې هغه درزونه سره پیوند شوي وو، چې د مجاهدینو اوو ګوندونو او شیعه ګانو د دوو ګوندونو د جګړو په نتیجه کې رامنځته شوي وو، یوځل بیا امریکایانو افغاني ټولنه تقریباً په دوو سوو سیاسي احزابو او ډلو وویشله.
هر اروپایي هیواد تقریباً د یو -یو درجن سیاسي احزابو د تأسیس، تمویل او چلولو کفالت په غاړه واخیسته او له اروپایي هیوادونو پرته ګاونډیو هیوادونو هم په افغانستان کې په قومي او ژبنیو بنسټونو د خپلو سیاسي او کلتوري مصالحو د خوندي ساتلو په هدف احزاب او ټولنې رامنځته کړې، د هغوی لپاره یې په پراخه پیمانه تبلیغاتي وسایل او ډله ییزې رسنۍ په کار واچولې.
دغو احزابو او سیاسي جریاناتو افغاني ټولنه په داسې ډول وویشله چې د ملي وحدت خبره یوازې یو شعار پاتې شو ، چې هیڅ عملي تحقق نشي موندلای.
مستعمرین هرځای استعمار شوي ملتونه همداسې په ډلو او ټپلو ویشي، تر څو د دوی په خلاف د یو کېدو امکان له لاسه ورکړي او هم هره ډله د بلې په مقابل کې د ځان لپاره محتاجه وساتي، او په دې ډول د خپلو پالیسیو او طرحو د عملي کولو لپاره له یوه څخه زیات بدیلونه په اختیار کې ولري، او همدغه د انګریزانو د پخواني استعمار عملي مصداق دی چې وایي Divide and rule یعني بیل یې کړه او ېل یې کړه.
په سیاسي اجرأتو کې د عامو خلکو د ګډون او د بیان د غربي ډوله ازادۍ مقصد دادی چې په مسلمانانو کې د اطاعت او له مرکز څخه د ملاتړ پر ځای په محلي سطحه د تصمیم نیولو متعدد مراجع رامنځته شي او د ټولنې افراد دې ته تشویق شي چې مرکزي حکومتونه د خپلو سیاسي اقداماتو په نتیجه کې تر فشارونو لاندې وساتي، چې دا په یو وخت کې غرب ته دوه فایدې په لاس ورکوي، چې یوه یې د مرکزي حکومتونو کمزوري کول او بله یې په عامو خلکو کې په خلاص مټ د فعالیت د زمینې برابرول دي، او هغوی د حکومتونو په مقابل کې د بېلابېلو سیاسي او اجتماعي جریاناتو له لارې متحرک کول دي.
مأخذ (( فکري پوهنه ))

☆ – څوک چې په خواب ورکولو کې فکر نه کړي، نو ډېرې تیروتنې به یې په خبرو کې راځي یا خو داسې خبره وکړه، لکه هوښیار په هوښ کې، یا د څارویو په ډول، خاموش کینه. (د سعدي پندونه)

# حضرت سعد رضی الله عنه

حمدالله حلميار

کله، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د حج په موسم کې د ثیرب (مدینې) خلکو ته د اسلام دعوت ورکړ، د هغو له جملې څخه یو شمېر یې مسلمانان شول او بېرته خپل دیار ته وګرځېدل، نو هلته یې په پټه سره د اسلام مقدس دین ته دعوت پیل کړ، په کمه موده کې د مسلمانانو تعداد هم زیات شو، د یثرب مسلمانانو یو پلاوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورولېږه، تر څو دوی ته یو مبلغ را واستوي او دوی ته اسلامي ارشادات وروښیي، رسول الله صلی الله علیه وسلم مصعب بن عمیررضی الله عنه ورته را واستاوه، په پټه د اسلام دعوت او تبلیغ جاري و، یوه ورځ د اسلام سفیر مصعب بن عمیر د بني عبدالاشهل کورنۍ مشر او د اوس قبیلې سردار سعد بن معاذرضی الله عنه ته د اسلام دعوت ورکړ او هغه اسلام قبول کړ، کله چې سعد بن معاذ په اسلام مشرف شو دا وخت یې عمر یو دېرش کاله وو، خپله کورنۍ (بنو اشهل) یې مخاطبه کړه: کلام رجالکم و نسائکم حرام علی حتی تسلموا (تر څو مو اسلام نه وي راوړی ستاسو د نارینه وو او ښځینه وو سره خبرې کول پر ما حرام دي) هغه وو چې د قبیلې ټولو کسانو یې خبرې ته لبیکووایه او په اسلام مشرف شول.

## د حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه شخصیت او په قوم کې رسوخ:

دی په خپل قوم کې تر ټولو محبوب او خوښ انسان وو، دده خبره د ټول قوم لپاره د امر په معنی وه، چې هېڅ کله یې دده له امر نه سرغړونه نه ده کړې، حضرت اسعد بن زراره رضی الله عنه چې د مصعب بن عمیر رضی الله عنه کوربه و، یوه ورځ په خوشحالۍ سره مصعب رضی الله عنه ته راغی او ورته ویې ویل: زما تر شا د قوم یو سردار را روان دی، که چېرته ده ستا خبره ومنله، نو په الله قسم که د هغه له قوم څخه یو هم د هغه له خبرې سرغړونه وکړي، دا سردار حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه و، کله چې یې خپل قوم ته په خطاب کې وویل : اې قومه! زما خبره په تاسو کې کوم حیثیت لري؟ نو ټولو ورته

وويل چې ته زمونږ سردار يې، ته زمونږ تر ټولو د ښه فکر والا يې، ته تر ټولو امين او تر ټولو بهتره انسان يې، ستا خبره مونږ ته منظوره او منلې ده. دا هغه ورځ وه چې ده اسلام راوړی و او دده په يوه خبره دده ټولې قبيلې هم اسلام منلی و، حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه هغه جليل القدر صحابي دی کوم چې د بدر او خندق په غزاګانو کې شريک شوی و. دا هغه مبارک انسان دی چې د ژوند يواځې شپږ کاله يې په اسلام کې تېر کړل، خو کومه ورځ چې وفات شو پاس عرش په ښورېدو شو، وايي خلکو به ويل ای سعده پر تا دې د الله رحمتونه وي، ستا هغه کوم اعمال وو، چې د ژوند په دغو شپږو کلونو کې يې دومره خپل الله ته ورنږدې کړی وې؟ د حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه د مرګ په ورځ عرش ولړزېده، له عبدالله بن جابررضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: دا هغه صالح انسان وو، چې د اسمانونو دروازې ورته پرانيستل شوې، کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د منافقانو نه دا خبره واوريده چې ويل يې: په الله قسم په خپل ژوند مو داسې ورځ نه وه ليدلې او دومره سپکه جنازه مو تر ننه نه وه پورته کړې، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: په الله قسم نن اويا زره ملايکې د حضرت سعد دجنازې د ليدلو لپاره راغلې وې او دومره ملايکې تر ننه پورې ځمکې ته نه وې راغلې.

## د حضرت سعد د جنت ځادر:

حضرت انس رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته چا د سندس او حرير ښځه جوړه يوه جبه راوړه چې ټولو ته ډېره ښه ښکاره شوه، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: په هغه ذات مې دې قسم وي د چا په اختيار کې چې د محمدصلی الله عليه وسلم روح دی، چې په جنت کې د سعد بن معاذ ځادرونه به تر دې ښه وي. حضرت سعد رضی الله عنه په خپل ژوند کې د قريشو سره د غزا او په بنو قريظه و چې د يهودو يوه قبيله وه د سترګو يخولو ارمان درلودی چې په دريو غزاوو بدر، احد او خندق کې يې دا ارمان پوره شو، د خندق د غزا په ورځ په داسې حال کې په شهادت ورسيد، چې د بنو قريظه يهودي قبيله يې د مسلمانانو په لاس مغلوبه او ذليله وليدله.

و صلی الله عليه وسلم سيدنا محمد و علی و صحبه اجمعين و من تبعهم باحسان الی يوم الدين.

## د حضرت عثمان رضی الله عنه څو خوږې خبرې

۱: کله چې ژبه اصلاح شي نو زړه هم سم شي.
۲: ګناه په يوه نه يوه شکل زړه بې قراره کړي.
۳: داسې خبره مه کړه چې د اورېدونکې له فکره لوړه وي.
د تورې زخم په تن باندې جوړېږي خو د خبرې زخم په روح کې پاتې کېږي.
۵: دا نړۍ د خدای تعالی سرای ده دا د هغو مسافرو لپاره وقف ده، چې د اخرت لپاره خپله توښه واخلي او څه چې په دې سرای کې دي د هغو په مينه کې ونه غورځېږي.
۶: په جنت کې ژړل عجيبه خبره ده خو په دنيا کې خندل تر هغو هم عجيب دي.




حماد ایوبي

د اسلامي امت پر وړاندې د یهودو او نصاراو دسیسې او سازشونه یوازې په نظامي برخې پورې محدود نه دي، بلکې په فکري اړخ کې یې هم د اسلام پر ضد پراخ کار کړی، دا دی نن ورځ یې پایلې په خپلو سترګو ګورو، وینو چې اسلامي ځمکې د کفارو لخوا غصب دي، د مسلمانانو سر او ناموس، مال او خاوره په امن کې نه ده، د مسلمانانو خویندې میندې د کفارو په زندانونو کې د اسارت شپې ورځې تیروي، مسجدونه او مدرسې ړنګې شوې، لومړنۍ کعبه د یهودو په تسلط کې ده، د دنیا هیڅ یوه داسې ګوښه نشته چې هلته د مسلمانانو سره ظلم او ستم نه وي، هره ورځ یو پر بل پسې اسلامي هیوادونه د کفارو تر یرغلونو لاندې راځي، د مسلمانانو د وژلو او زورولو نوي او حیرانوونکي تکتیکونه په کار اچول کیږي، خو لنډه دا چې هیڅ یوه داسې پلمه نشته چې کوم مسلمان یې په سبب له جهاد نه ځان خلاص کړي، ولې بیا هم د ډیرو ایمان پلورونکو له خولو دا جمله په اسانۍ سره بار بار راوزي چې جهاد اکبر او جهاد اصغر، حال دا چې د قرآن کریم په ایتونو او نبوي احادیثو کې د دوی د خبرو هیڅ کوم ثبوت نشته، هغه مقوله چې له جهاد نه تښتیدونکو ورته د حدیث نوم ورکړی دا ده:

رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر قالوا و ما الجهاد الاکبر؟ قال جهاد القلب.

ژباړه: نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایي چې: موږ له وړوکي جهاد نه اوس لوی جهاد ته راغلو، یو چا پوښتنه وکړه چې اې د الله جل جلاله رسوله! لوی جهاد کوم جهاد دی؟ هغه مبارک صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: د زړه جهاد (کافرانو سره جهاد وړوکی جهاد دی).

په دې هکله ملا علي قاري رحمة الله علیه په خپل کتاب موضوعات کبیر کې حرف راء په ۱۲۷ مخ کې د دې روایت له نقل کولو وروسته د ابن حجر عسقلاني په حواله سره لیکي: خلکو په ژبه دا الفاظ د حدیث په نوم جاري دي، حال دا چې دا د ابراهیم علیه نومي سړي وینا ده. (تنظیم لاشتات مشکوة اول جلد ۱۲۷مخ)

د همدغه په اصطلاح حدیث په اړه التعلیق الصبیح او بیضاوي لیکلي دي: چې ابن تیمیه رحمه الله و فرمایل:

هذا حدیث لا اصل له» یعنې د دې هیڅ اصل نشته، همدارنګه په فتاوی عزیزیه کې شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه د یو پوښتونکي په ځواب کې وفرمایل: دغه خبره چې د حدیث په نوم یادیږي د صوفیاء کرامو په تصنیفاتو کې ډیره موندل کیږي، او د هغوی په نزد دا نبوي حدیث دی، بهرحال له جهاد اکبر نه مراد دا نه دی چې له جهاد نه فارغ شي او بیرته راشي، بلکې له جهاد اکبر نه مراد دادی چې د نفس او شیطان سره جهاد وکړل شي، دا تفسیر د صوفیانو خیالات دي او د ټولو علماؤ خلاف دي چې له جهاد اکبر نه مراد له جهاد نه فراغت او راتلل دي او د سلیقه د کتابي او عبارتي پوهې د دې نه نفرت کوي چې وروسته راتلل لفظ (رجعنا) مفهوم دی.

د شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه له په نزد دا خبره یوائې د صوفیانو کلام کیدای شي، همدا شان د کتابي پوهې طریقه هم دا نه ده او نه هم په عبارتونو د پوهیدو طریقه داسې ده، دا چې شاه عبدالعزیز د وخت یو ستر عالم پرې اعتراض کړی معلومه شوه چې دا حدیث نه دی.

همدا راز مشارع الاشواق الی مصارع العشاق په ۳۰ مخ کې لیکلي چې د اسلام دښمنانو کله دا ولیدل چې د مسلمانانو سره د حفاظت لپاره د اعلاء کلمة الله په خاطر جهاد یو ستر او اساسي قوت دی، تر څو پورې چې جهاد وي نو د اسلام پر وړاندې د دوی بری ناشونی دی، څکه دوی ولیدل چې د جهاد فی سبیل الله په برکت سره مسلمانانو د نیمې پیړۍ څخه په کم وخت کې نیمه نړۍ فتحه کړه، د معاصرې نړۍ کفارو چې د اسلام او کفر ترمنځ د تیرو جګړو او د مسلمانانو د بریاو تاریخ ولوسته، نو د جهاد د له منځه وړلو، بدنامولو او ګډوډولو لپاره یې پخپلو کې سره ډیرې مشورې یې وکړې او بلاخره دې نتیجې ته ورسیدل چې د جهاد د مخنیوي یوه اسانه لاره داده چې د مسلمانانو په منځ کې د راحت طلبۍ مفکوره عامه کړل شي، مسلمانان د دنیا په ژوند، د کور، ښځې، بچیانو او خپلوانو په محبت کې راګیر شي، تجارت او کاروبار ورته پیدا شي نو بیا مسلمانان په اسانه جهاد ته زړه نه ښه کوي، همدې نقطې ته په پام سره کفارو د مسلمانانو په منځ کې د جهاد اکبر او جهاد اصغر خبره را پورته کړه او دومره یې مشهوره کړه چې نږدې د هر مسلمان تر غوږه یې ورسوله لکه نن چې موږ او تاسو ګورو، څکه کفار پوهیدل چې د کومې خبرې نسبت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته شوی وي مسلمانان یې په مینه قبلوي، بیا یې دا الفاظ (رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر) درواغجن حدیث په مسلمانانو کې خپور کړ.

دا الفاظ هیڅکله حدیث نه دی، د دې الفاظو ویونکی ابراهیم علبه نومی سړی اګر چې ثقه ؤ، خو دارقطني وئیلي دي چې: د ده طرفته هم د دې عبارت نسبت واضحه نه دی، کله چې د مسلمانانو په منځ کې دا الفاظ د حدیث تر نامه لاندې مشهور شول نو په مسلمانانو یې دا اثر وشو چې هغوی د کفارو سره جهاد ته شا کړه او د نفس سره په جهاد مشغول شول، په ذکر او فکر کې بوخت شول، دنیا یې کفارو ته ورپریښوده، بالاخره کفار غالب او مسلمانان مغلوب شول، اوس د غلامۍ ژوند تیروي.

همدا راز خطیب بغدادي رحمة الله علیه د دې عبارت نه لږ جدا عبارت سره یو حدیث ذکر کړی دی چې د هغې ژباړه داسې ده: حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي: چې رسول کرم صلی الله علیه وسلم له یوې غزا نه راستون شو نو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته یې وفرمایل: هر کله راشئ هر کله راشئ تاسې له وړوکي جهاد نه لوی جهاد ته دوباره راغلئ، اصحابه کرامو پوښتنه وکړه چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! لوی جهاد څه دی؟ نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: د خپلو خواهشاتو خلاف مبارزه کول لوی جهاد دی، په دې حدیث باندې هم ډیرو علماؤ جرحه کړې ده، څرنګه چې د دې حدیث په راویانو کې یو راوي خلف بن محمد خیام دی حاکم رحمه

الله فرمايي، چې د ده احاديث قابل د اعتبار نه دي او ابو يعلي خليلي رحمه الله فرمايي چې دی ډير ضعيف ؤ هر وخت به ورته شکونه پيدا کيدل او کله کله خو به يې داسې حديث هم رانقل کړ چې هيچا ته به يې معلومات نه وو، ابوزرعه رحمه الله فرمايلي دي چې دا ډير دروغژن سړی ؤ حديثونه به يې له ځانه جوړول او ابن عدي رحمه الله فرمايي چې: د دې سړي ټول احاديث له ځانه جوړ شوي دي، شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله به فرمائيل: چې بعضي خلک دا حديث نقل کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم له تبوک نه په بيرته راتلو باندې وفرمايل ((رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر فلا اصل له)).

ژباړه: موږ له وړوکي جهاد نه لوی جهاد ته وروسته راغلو، د دې حديث هيڅ اصل او بنياد نشته( مشارع الاشواق ۳۱ مخ)

د جهاد مع النفس او جهاد مع الکفار په هکله د ترمذي شريف د يو قول سره مولانا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله په کوکب الدري اول جلد ۴۲۵ مخ کې ليکي:

و لايخفي ما بين الجهادين من الالتئام و الاتصال، فانّ مجاهدة الکفار لا تخلوا عن مجاهدة النفس ولا تتصوّرُ دُونها و مجاهدة النفس اذا کمُلت لا تکادُ تترک الرجل لا يجاهد الکفار بلسانه و بسنانه

ژباړه: دا خبره معلومه نه ده چې جهاد مع النفس او جهاد الکفار د دواړو په منځ کې اتصال شته، ځکه چې له کافرانو سره جنگېدلو کې د نفس مجاهده کيږي او د نفس د مجاهدې نه بغير له کفارو سره د جنگيدو خو تصور هم نه شي کيدای او پاتې شوه د نفس مجاهده، نو د نفس مجاهده چې کله مکمل شي نو دا بيا سړی له کافرانو سره له جنگيدو نه بغير نه پريږدي( خامخا يې جهاد ته تشويقوي) اگر که په ژبه سره وي، يا په توره او نيزې سره وي.

وفضّل الله المجاهدين علی القاعدين اجراً عظيما(النساء:۹۵ايت)

يوه شيبه دلته تم کيږو د دې ايت مخاطب صحابه کرام رضی الله عنهم دي يعنې لومړي د هغوی په باره کې نازل شوی، د دې ايت د نزول په وخت کې يوه ډله اصحابه کرام هغه وو چې جهاد ته وتلي وو او يوه ډله هغه وه چې جهاد ته نه وو وتلي او د فرض کفايي جهاد په صورت کې ورته د نه تللو اجازه وه، البته هغه ډله چې جهاد ته تللې وه الله جل جلاله هغه په دوو توپيرونو سره لوړه کړه، يو دا چې د ناستو( پاتې خلکو) او نه تلونکو په مقابله کې د وتونکو خلکو درجه لوړه ده او دوی ته به لوی اجر ورکول کېږي، دوهم دا چې تلونکي خلک مجاهدين دي او په دغه وخت کې نه تلونکي قاعدين يا ناست خلک مجاهدين نه دي، بلکې مجاهدين هغه شول چې جهاد ته وتلي وو( کوم اصحابه کرام چې له جهاد نه پاتې وو که يې هر څومره ښه کارونه کول او دې کې شک نشته چې ښه کارونه به يې کول مگر دلته مهمه خبره داده چې هغوی خو ټول د نفس په تزکيه يا د نفس سره په مجاهده کې بوخت وو ولې نو بيا پرې هغه کسان بهتر و بلل شول کوم چې جهاد ته تللي وو؟؟ په داسې حال کې چې جهاد هم فرض کفايي وو، اوس لږ فکر پکار دی چې د فرض کفايي جهاد دومره لوړه درجه ده چې تر سره کونکي يې په ناستو او د نفس سره په مجاهده بوختو خلکو باندې فضيلت لري، نو د فرض کفايي جهاد به څومره لوړه درجه وي؟)

که چيري د نفس سره مجاهده د سنگر له جهاد نه بهتره وای نو بيا د ((وفضل الله المجاهدين علی القاعدين)) څه مطلب شو؟ بيا خو به د دې ايت په مفهوم باندې پوهيدل گران شي، يوه خبره دا هم په ياد ولرئ چې سلف صالحينو د جهاد په اړه څومره کتابونه ليکلي دي ټول يې د جهاد مع الکفار په هکله دي، تر ننه پورې هيڅ يو داسې معتبر او مستند اسلامي کتاب نشته چې هغه دې د جهاد د فضائلو په باره کې ليکل شوی وي او د نفس په

جهاد باندي يې بحث کړی وي، البته د رياضت په نوم چې کوم کتابونه ليکل شوي دي هغوته يې د زهد او تقوی نوم ورکړی چې پخپله د عبدالله ابن مبارک رحمه الله يو کتاب الجهاد او بل کتاب الزهد د دواړو مضامين جدا جدا دي، او بيا دا فکر هم پکار دی چې شاوخوا ۵۰۰۰۰ تنو اصحابه کرامو رضي الله عنهم خپل ژوند د جهاد په سنګرونو کې د کفارو په وړاندې د مبارزې له کبله قربان کړی نو آيا د هغوی ژوند په دومره وړوکي کار کې مصرف شو؟؟ آيا دغه ۵۰۰۰۰ تنه اصحابه کرام د نفس سره د جهاد کولو نه عاجز وو؟؟ يا د دې په ګټه نه پوهيدل؟؟ د نفس سره د جهاد هيڅ کوم داسې ثبوت نشته چې ورته جهاد اکبر وويل شي.

پورته لنډ او مختصر بحث چې معلومات مې د دعوت الجهاد له کتاب نه راخيستي، موږ او تاسو ته په واضح ډول يو پيغام دی چې د نفس سره مبارزه يوه جدا خبره ده او جهاد اکبر ورته ويل هيڅ کوم اصل نلري، نه يې په احاديثو صحيحه وکې ثبوت شته او نه يې د سلف صالحينو په کتابونو کې کومه يادونه موندلای شو، که جهاد کول وي نو هغه جهاد دې وشي چې ستا سر او مال د الله جل جلاله له دين او د خپل مسلمان امت د دفاع په لاره کې قربان شي، هسې پلمې او بهانې ورته لټول پکار نه دي، د سنګر مجاهد په عين حال کې نفس سره هم په مجاهده بوخت دی، نو ځکه خو الله جل جلاله په ناستو عبادت ګذارو خلکو او پلمو جوړونکو دواړو باندې د مجاهد في سبيل الله درجه لوړه فرمايلې ده، هيله ده چې دغه مختصر معلومات د درنو لوستونکو د استفادی وړ وګرځي.

## د حضرت علي رضي الله عنه تقوی

د حضرت علي رضی الله عنه د تقوی ډېرې خبرې مشهورې دي، خو زمونږ د دې څلورم راشد خليفه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د تره زوی او زوم دی په اړوند څو لنډې کيسې را نقل کوو:

□: له زيد بن وهب نه روايت دی، چې يو ځل حضرت علي رضی الله عنه په داسې حال کې له کوره ووت، چې يو لنګ يې په ځان کې و او په څادر کې يې ځان پټ کړی و، لنګ يې په يوه ليتاړه تړلی و چا ورته وويل: په دې لباس کې څنګه ژوند کوې؟ ده وفرمايل! زه دا لباس له دې امله ډېر خوښوم چې پوه شوم له تظاهر او ځان ښودلو نه لېرې دی د لمانځه لپاره آرام او د مومن سنت دی.

□: يو ځل حضرت حسن بن علي رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه د وفات په مناسبت خطبه ولوسته او ويې ويل: ای خلکو! پرون له تاسو نه داسې يو شخصيت جدا شو، چې سره او سپين زر يې نه دي پرېښي يوازې اووه سوه درهمه ورسره وو، چې له بيت المال نه په خپله برخه کې ورکړل شوي وو، او غوښتل يې په دې پيسو خادم واخلي.

# د خوښیو امتحان

ابومحمد همراز

دنیا د تحولاتو زانګو ده، انسان کله له خوښۍ او کله له غم سره مخ کوي، خوښي او غم په متفرقو انواعو سره څرګندیږي، خوښي کله د مال دولت په څیر، کله د قدرت او چوکۍ په څیر ، کله د واده او اولاد په شکل کې راځي.

غم هم انواع لري، خو البته د خوشالیو برعکس، غم په ظاهره ثقیل (درونډ) دی، د بدن دحس په برخو ډیر اثر کوي، له سترګونم او له زړه نه آه او فریاد را باسي، د ټولنې ظاهر بې خونده کوي، خو په حقیقت او معنویت کې غم له خوښیو خفیف (سپک) دی، غم له خوشالیو اسانه دی، غم طبعاً د انسان طبیعت خپل رب او پالونکي ته متوجه کوي، انسان سره چې کله درد او غم یو ځای شي نو بې اختیاره د یا رب فریاد له زړه نه را وباسي، ډیر لوی متکبرین مشرکین چې کله د ذالجلال په عذاب کې ښکیل شوي دي؛ نو بې اختیاره یې توبې ویستلي او حقیقي رب ته متوجه شوي دي.

کله چې په یو مسلمان غم راشي نو هغه هم بې اختیاره خپل رب ته ډېر متوجه کیږي او لاج وربان دې رحمیږي، اجرورکوي، ځکه چې بنده کله الله جل جلاله یاد کړي نو الله جل جلاله خامخا خپل بنده نازوي، اجرونه ورکوي، غم یې لرې کوي او نصرت ورسره کوي.

الله جل جلاله فرمايي: ادعوا ربكم تضرعاً وخفية (الاية)

ژباړه:

را و بولئ خپل رب په زارۍ عذر او په پټه سره، ځکه په پټه رابلل د اخلاص دلیل دی.همدا راز الله جل جلاله فرمايي: وَادْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا (الايه)

په ویره او تمه په هر حالت کې الله جل جلاله ته توجه د مسلمان لپاره په دنیا او اخرت کې د نجات سبب دی ، إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ.

ژباړه: نیکي د الله جل جلاله رحمت ته د نیږدیکیت لاره ده.

نو دا چې غم په ظاهره ثقیل دی او نتایج یې ښه راووتل ، غمجن په خفیف ډول د اجرونو مستحق وګرزېده.

همدا راز خوښي،(خوشالي) په ظاهره له زړه نه بوج

لرې کوي، انسان ته ارامي او سکون وربښي، خو د خوشالۍ حقيقت ته په کتلو سره چې دا خوښي په ما د چا پيرزوينه ده او لمانځل يې څنګه اړين دي، دا ډېر ثقيل او درونډ کار دی، چې زما د ليکلو موضوع هم د خوښيو امتحان دی.

د سختيو په امتحان کې بريالي کېدل ستونزمن کار نه دی، خو د خوښيو په امتحان کې بريالیتوب ترلاسه کول به په خپل نفس له فشار راوړلو نه خالي نه وي، د خوښيو امتحان مسلمان له درې حالاتو سره مخ کوي، لومړی چې شکر ادا کړي دوهم چې شکر اداء نه کړي، خونا شکري هم نه کوي، دريېم هغه چې ناشکري وکړي. د خوښيو په امتحان کې شکر ادا کول د ډيرې لوړې مرتبې د اشخاصو کار دی، ځکه مونږ او تاسې يې په مجموع کې وينو که ډېرو مسلمانانو ته الله جل جلاله ډېر مال او دولت ورکړي، خو ډيرکم خلک دي چې په (وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ) باندې يې عمل کړی وي، ډېرو مسلمانانو ته الله جل جلاله قدرت ورکړی، اولاد يې ورکړی، ډېرې خوشحالۍ يې ورپه برخه کړي، خو ډير کم مسلمانان دي چې دخپلې خوشحالۍ اظهار يې په شکر ادا کولو سره کړی وي.

د مشکورينو په باره کې الله جل جلاله فرمايي:
لَئِن شَكَرْتُمْ لأَزِيدَنَّكُمْ)
ژباړه: که چېرته تاسو شکر وويست نو زه به زيادت وکړم په خپل نعمت سره.

دوهم حالت چې مسلمان يې د خوښيو په امتحان کې اختياروي، هغه داسې چې نه شکر کوي او نه ناشکري کوي، مثلاً يو مسلمان ته الله جل جلاله قدرت په لاس ورکړ، دا مسلمان نه ظلم کوي او نه احسان کوي. يا يو مسلمان ته الله جل جلاله کثير مال ورکړ، داسې هم نه کوي چې فرض زکوة نه ورکوي او داسې هم نه کوي چې صدقې او خيراتونه وکړي.

که يو سړی د خوښيو په امتحان کې د دوهمې درجې اختيار په خپل ځان ولري، زما په فکر کامياب دی، خو د خوښيو په امتحان کې اکثره انسانان په دريېم سرنوشت باندې اخته کيږي چې هغه ناشکري ده، د خوښيو په امتحان کې دناشکرۍ ډېر ډولونه دي، خو د هر انسان سره په خوشحالۍ کې دا دوه شيان ډير ملګري وي، چې يو يې تکبر او بل رياء ده، دا دوه په دنيا او په عقبیٰ کې ډېر مهلک او مضر دي، په خوښۍ کې اکثر له انسان نه لويي او تکبر زيږي.

لويي او تکبر څه ته وايي؟ په دې اړه لږ وضاحت اړين بولم:

الله جل جلاله متکبر ذات دی او د الله جل جلاله رسول حضرت محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم مسلمانانو ته د تکبر ډېرښه تعريف کړی، تکبر په لغت کی لويوالی ته وايي، الله ج فرمايي:
{والذي تولی کبره ...}هغه څوک چې پورته يې کړ لوی بار.

او په حديث شريف کی نبی عليه سلام د تکبر تعريف داسې کوي:
عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ قَالَ رَجُلٌ إِنَّ الرَّجُلَ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ ثَوْبُهُ حَسَنًا وَنَعْلُهُ حَسَنَةً قَالَ إِنَّ اللَّهَ جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ الْكِبْرُ بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ. مسلم۱ ص ۳۰۲ ط:
عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: هغه کس به جنت ته داخل نشي چې په زړه کې يې د ذرې د يوې وړې برخې په اندازه کبر وي؛ نو يوه کس وويل: بې له شکه يو سړی دا خوښوي چې کالي او پيزار يې ښايسته وي، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: بې شکه الله جل جلاله ښايسته دی او ښايست خوښوي، له حق څخه سرغړونه او خلک سپک ګڼل

دا کبر دی.
د حق نه سرغړونه او د خلکو سپک ګڼل بل چاته د حقارت په نظر کتل، که په دې اړه فکر وشي اکثره دا خويونه او عادات به په ظاهري خوشحاله انسانانو کې پيدا کړو، چې يا ډېر مال ولري، يا يې قدرت په لاس کې وي، زور ورسره وي او اولادونه يې ډير وي...
کبر هغه نقصاني عمل دی چې د انسان خوښي په ابدي غم بدلوي. اکثره مسلمان په خپلو خوښيو کې د نفس او د شيطان په لارښوونه دومره سرګردانه شي چې په ځان نه پوهيږي، دا ګمان هم نه کوي چې زه کبر کوم، خو کبر د هلاکت د کندې په غاړه درولی وي، متکبر يو الله جل جلاله دی ځکه يې د کبرجن په اړه ډېر سخت وعيدونه او زورنې هم کړي دي، الله جل جلاله فرمايلي:
وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ (الايه)
ژباړه:
او خلکو ته له کبره مخ مه ورګرزوه، بلکې ګوره دوی ته په تواضع سره او په ناز او نخرو په ځمکه مه ګرزه، بې شکه الله جل جلاله کبر کوونکی او فخر کوونکی نه خوښوي. تفسير کابلي ليکلي:
په غرور تکبر او لاپو د سړي څه قدر او عزت نه زياتيږي، بلکې د دې بر عکس ذليل حقير او سپک ښکاري، که څوک مخاخ څه ورته ونه وايي پسي شا خو خلک ورپسې ډېر بد وايي او سپک يې يادوي.
په بل ځای کې الله جل جلاله فرمايلي:
وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا (الايه)
ژباړه: د ځمکې په مخ په داسې حال کې مه ګرځه چې خاوند د کبر اوسې، بيشکه چې د پښو په دربولو او کبر سره به ځمکه څيرې نکړې او د اوږدوالي له جهته به هيڅکله د غرو سرونو ته ونه رسيږې، همدا راز په پورته حديث شريف کې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:
لا يدخل الجنة من کان في قلبه مثقال ذرة من کبر (الحديث)
ژباړه: داخل به نه شي جنت ته هغه څوک چې په زړه کې يې يوه ذره د کبر وي.
په دنيا کې هم د متکبرينو ډېر بد انجام وي اګر که هغه غير مسلمان هم وي. له تېر تاريخ به تېر شو د همدې عصر يو ښکاره مثال د متکبرې امريکا دی چې په ماديات خوښ، د الوتکو او ټانګونو د غرور په نشه مست، د ټول کفري اتحاد په ملاتړ غره او په ډيره پرمخ تللې کبرجنې ټيکنالوژۍ سمبال په عاجز، فقير او کنډواله، خو د اسلام له پلوه غني افغانستان باندې ظالمانه يرغل وکړ، کفري ميډيا ددوی باطل کبر ته دومره هوا ورکړې وه چې په خپل کور کې به دوه ورونو د امريکا خلاف خبره نه شوه کولی، خو نن هماغه مغروره امريکا د تېښتې په حالت کې ده، د ايمان په وسله سمبالو مجاهدينو د کفر ټانګ او طيارې ته ماته ورکړه، د کبر انجام د اغاز سره په ډېر تفاوت څرګند شو.
وايي: عاجزي لويه بادشاهي ده، ډيرښه يې ويلي دي.
د عاجزۍ بنسټ په درې شيانو ولاړ دی:
۱: په سلام اچولو کې وړاندې والی کول.
۲: په مجلس کې د پورته ځای نه لاندې ځای خوښول.
۳: ځان ښودنه او شهرت بد ګڼل.
همدا راز د خوښيو په امتحان کې شيطان رياء ته هم ډېره بلنه ورکوي، تردې چې مسلمان د دې عظيمې ګناه مرتکب کړي، الله جل جلاله دې مونږ وساتي. د رياء په اړه الله جل جلاله فرمايلي:
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ

وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا لاَ يَقْدِرُونَ عَلَى شَيْءٍ مِمَّا كَسَبُوا وَاللَّهُ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ (الايه)

ژباړه: اې مؤمنانو د خپلو صدقاتو ثواب مو په خلکو باندې د احسان کولو او ضرر ور رسولو له لارې مه ضايع کوئ (ستاسې دا عمل د هغو خلکو دې عمل ته ورته دی چې ) خلکو ته دځان ښودنې په موخه خپله شتمني مصرفوي او پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان نلري.

د رياء کار مثال د هغه کاڼي په څېر دی چې ګرد پرې پروت وي بيا زورور باران پرې وشي او پاک يې کړي، رياکاران به د خپلو (رياکارانه) اعمالو په وجه له ثوابه د هيڅ برخې په ترلاسه کولو ونه توانيږي او الله جل جلاله منکرينو ته نيغه لار نه ښيي.

د همدې آيت شريف په تفسير کې هغه حديث شريف هم ذکر شوی چې رياءکار عالم، غازي او هغه مالدار شتمن چې د رياء لپاره يې خپل مال مصرف کړی دی په اور به وسوزول يې، ټول مسلمانان خصوصاً مجاهدين ورونه بايد د خوښۍ امتحان ته ډير زير او متوجه و اوسي، ځکه اکثره همدا خلک دداسې امتحان سره مخ کيږي، قدرت په لاس ورځي، غنيمت مال او دولت په لاس ورځي چې بيا يې په کبر، اطاعت او رياء باندې سترګې پټې وي، په انجام کې به د ډېرو تکليفونو او کړاوونو سره سره نتيجه په لاس کې ونه لري، او يا به هم د ډېر بد عاقبت سره مخ شي.

تکبر عزازيل را خوار کرد
بزندان لعنت گرفتار کرد

د حضرت علي رضي الله عنه څو زرينې ويناوې

□: د وخت په هر ګام کې ستونزې پټې دي.

□: هوښيار ځان ټيټ ګڼي، ځکه خو لوړې درجې ته رسيږي، ناپوه ځان لوړ لوړ کوي، ځکه خو ذليل شي.

□: د خدای تعالی په کائناتو کې فکر کول هم عبادت دی.

□: کله چې سړی بې کاره شي، نو عشق (شهوت) ورياد شي.

□: په ستونزو کې چې وډار شې دا لويه ستونزه ده.

□: علم له مال نه ښه دی، ځکه ته د مال ساتنه کړې او علم د تا ساتنه کوي.

□: له حرامو کارونو څخه د ځان ساتنې هم دويم ډول صبر دی.

□: سړی چې څومره حريص وي همدومره يې په الله تعالی باندې يقين لږ وي.

□: د تا په خپل مال کې يوازې همدومره برخه ده چې تا په خپل لاس آخرت ته ولېږله او نور د تا د وارثانو ده.

□: داسې ډېر لږ پېښېږي، چې تيزي کوونکی نقصان ونه کړي او دا هم شاذه يا نادره پېښه ده، چې صبر کوونکی کامياب نه شي، صبر کوونکی تل کامياب وي.

# د افغانستان تجزیه د منلو نه ده

زبیر وحدت

اسلام د انسانانو د دنیا او د آخرت د ټولو ښېرازیو د خوندي ساتلو دین دی او د ښېرازیو په جمله کې یووالی یا اتفاق یو مهم عنصر دی چې انساني ټولنو ته په ډېرو برخو کې بریالیتوبونه ورپه برخه کوي. له پیل څخه تر ننه مسلمانان پدې مکلف دي چې د کفارو وحشي اوشهواني ټولنې د جاهلیت څخه د انسانیت او اسلامیت په لور راوګرځوي، مسلمانانو چې کله د الله تعالی په دین منګولې ښخې کړې وې او اصلي مقصد یې اعلأء کلمة الله وه د ډېرو کفري ټولنو د هدایت وسیله شول، تر یوې مودې دغې لړۍ په ښه توګه جریان درلود خو کله چې مسلمانانو د غیر دین کارونو ته مخه کړه نو نه دا چې د کفارو د لا زیات هدایت سبب ونه ګرځېدل، بلکې داخلي یووالی یې هم لمنځه ولاړ او په ټوټه ټوټه هیوادونو تقسیم شول، شیطان اوکفار د انسانیت د ریښتیني دین اسلام سره دښمني کوي، او تل کوښښ کوي چې د مسلمانانو تر منځ اتفاق او یووالی لمنځه یوسې، د کفارو په لمسون مسلمانانو د یو بل سره دښمني او کینې پیل کړې، د ځان ځانی په مرضونو اخته شول اوس نو په هر منفرد مسلمان هیواد باندې کفار د وحشت هر ډول تیرې کوي او دغه بعضې په اصطلاح مسلمانان هم په مختلفو ډولونو د کفارو د تیریو ملاتړ کوي. علامه سید جمال الدین افغان ویلي چې: مسلمانان دې خپل اسلامي یووالی منځته راوړي او که هغه کار نه شي کولی نو د خپلو هیوادونو په منځ کې باید قوي یووالي ټینګ کړي او پرینږدي چې نور هم د داخلي تجزیو ښکار وګرځي، هغه داخلي مُضره عوامل باید لمنځه یوسي چې بهرني کفار ورڅخه د لاس د آلې په توګه کار اخلي، په همدې اړه یې د افغانستان د داخلي یووالی د ساتلو او قوت خبره هم کړې وه، خو د هغه د توصیې د یوې برخې څخه د افغان ملت ګوند رامنځته شو، مګر هغوی د اسلامي ښېرازۍ له سرچینو بې برخې ول او نور نواقص هم پکې موجود ول چې ټول ولس لپاره د منلو وړ ونه ګرځېدل، بلکې دوی هم د افغانستان پر ضد د یرغلګرو د متحدینو په قطارونو کې داخل شول. د امیر شیرعلي خان په وخت کې د روسانو لخوا د افغانستان او په خاصه توګه د شمال د

تجزیې لپاره بعضې اثار تر نظره کیدل، هغوی د انګریزانو سره په مصلحت د دغې منصوبې پلانونه طرحه کړي ول او په شمال کې یې د داخلي لاس وهنو لپاره د تجزیه طلبي لپاره بعضې افراد هم ګمارلي ول چې تبلیغات وکړي او د شمال په ولسونو کې د افغانستان د تجزیې انګازه قوي کړي. څه موده بعد د هیواد مدبر وزیر محمد ګل خان مهمند د دغې (تجزیې) د خطر د امکاناتو د لمنځه وړلو په تکل کې شو او ډیر زیات، نه هیریدونکي د وطن د متحد ساتنې خدمات یې ترسره کړل، د افغانستان د شمال د قومونو څخه بعضې خلک یې د پښتنو سیمو ته لکه هلمند، قندهار، زابل، غزني، ګردیز او نورو سیموته ولیږل او هلته یې ښې ځمکې ورکړې او د افغانستان پښتانه یې شمال ته ولیږل، تر څو په هر ولایت کې د یوه مشخص قوم وګړي تنها ونه اوسي، ځکه بهرنیو تجزیه طلبو هیوادونو د فعالیت مهمه نقطه همدا وه چې شمال کې اقلیت قومونه د پښتنو پر ضد متحد کړي او په ډیره آسانه توګه د افغانستان د شمال د ټوټه کولو پروسه عملي کړي، د وزیر محمد ګل خان مهمند پر ضد داخلي فاشستو تجزیه طلبو کړیو ډیر پروپاګند وکړ او په رنګارنګ تهمتونو یې ورنګاوه، ځکه د هغوی هغه شوم پلانونه یې ور رنګ کړل چې دوی د افغانستان تجزیه پکې مجسم کوله.

د روسانو د یرغل ترمخه او د یرغل په وخت کې هم ډیرو کړیو د مختلفو عنوانونو او داعیو تر شا د افغانستان د تجزیې د پروسې فعالیتونه کول، بعضې افرادو لکه مجددي، کلکاني، طاهر بدخشي، او نورو کمونیستي ډلو لکه ستمي، شعلي، ماویستي، پرچمي او داسې نورو دغې پروسې ته په ښکاره کار کاوه، او وروسته بیا د مجاهدینو په صفونو کې هم د افغانستان د تجزیه طلبۍ مفکوره ننویستل مهم وګڼل شول، ځکه کمونیستي مفکورې او ډلو وروسته په ظاهره ماته خوړلې وه او د کمونستي مفکوري په اساس یې شتون او د کار بقأ نوره نه لیدل کیده، نو د روسانو دهدایت په اساس د جمعیت او شورای نظار ډلو کې تر ډیره داخل شول او رباني او مسعود د دغې شومې پروسې د عملي کولو په خاطر د روسانو د یرغل په وخت کې لا دغه اقدامات کول، د جهاد په دوران کې یې د روسانو سره د اوربند پټ پروتوکولونه کړي ول او د پښتنو په سیمو او د روس ضد مجاهدینو په ګروپونو یې تعرضونه کول او د داخلي دښمنیو جوړولو لپاره بهانې یې د یرغلګرو روسانو په شتون کې رامنځته کولې، په مختلفو طریقو یې شمال کې په پښتنو د ژوند کولو دایره تنګه کړه، د ډیرو تکالیفو سره یې مخ کړل او د هندوکش له لمنو څخه د پښتنو د مهاجرولو شرایط یې رامنځته کول، تر څو بیرته حالت داسې منظم کړي چې د تجزیې پروسه ښه عملي شي، روسانو د خپل شوروي مشترکه متحدو مستعمره هیوادونو په قطار کې د ټول افغانستان شریکول هم غوښتل، خو کله چې د افغانستان د ولس د جهاد قوت یې ولیده، نو پدې فکر کې شول چې د ټول افغانستان د خپلولو موضوع مشکله ده، نو د شمال ساحو د خپلولو په تګلارو یې ډیره او خاصه پانګونه وکړه او هلته (شمال) کې یې کمونیست کارمل د کمونست نجیب د حکومتدارۍ په وخت کې بیرته په دغو کارونو بوخت کړ، کارمل د رباني او مسعود جمعیت او شورای نظار، د دوستم جنبش، حزب وحدت او ورته نورو تر منځ تعاملات رامنځته کول او کمونیسنت جنرالان یې دغو تش په نوم جهادي ډلو کې وظیفه داره کړل، د مثال په ډول جمعیت ته یې جنرال مؤمن،جنرال بابه جان، جنرال اصف دلاور، جنرال نبي عظیمي، جنرال محمود بریالی، او نور په سلګونو مشهور کمونستي جنرالان ورداخل کړل او همداسې یې نوروګوندونو ته هم کمونیست افراد ورننویستل. د دغو

تعاملاتو د رامنځته کولو اصلي مقصد د افغانستان د تجزيې لپاره يو متحد ګروپ جوړول ول. په دغو دورو کې په افغانستان ډېر زيات تکليفونه او د وجود کمزورۍ راغلې چې ډېر آسانه وه افغانستان د هر ډول مشکل په لور لاړ شي خو د ډېرو ناخوالو د راتلو په حالت کې هم د افغانستان د تجزيې عمليه ترسره نه شوه، د افغانستان د اوسيدونکو، مناطقو او قومونو جوړښت داسې پيوند شوی وه چې بيلول يې ناممکنه کار وه، پدې برخه کې د ډېرو مدبرو مؤمنو او مخلصو افغانانو د اسلام او وطن سره د مينې د هڅو نتيجه بلل کيږي، خو تر يوه حده د وزير محمد ګل خان مهمند د بيداره ذهن، علمي او عملي کارونو نتيجه يې ګڼلی شو. افغانستان څوک هضمولی نه شي، په افغانستان کې د اسلام ضد مفکرين او فعالين او تجزيه طلبۍ ته مايله ډلو اوعناصرو ته به ډېره سخته سزا ورکړل شي او د مؤمنو افغانانو لخوا به د ډېر جدي عکس العمل سره مخ شي. په تېر کې د انګريزانو آرمانونه مات شوي دي، پرون د روسانو شوم پلانونه شنډ شول او نن د امريکايانو د امپراطورۍ جسد د تابوت خواته ور روان دی، دغه د امريکايي يرغل په تنني دوران کې هم د افغانستان د تجزيې انګازې د شمال ټلوالې او ورته نورو ادرسونو څخه په وار وار اوريدل شوې دي، د فدراليزم او نورو تجزيه طلبو فورمولونو د عملي کولو خبرې کوي او امريکايي سناتوران يې د عملي کولو په کارونو کې ورته بوخت يې، خو لله الحمد يرغلګرو امريکايانو د ډېرو نورو کفري هيوادونو او داخلي اجنټانو او ايمان پلورونکو په مرسته دا ديارلس کاله ونه شول کولای چې جهاد ناکامه کړي، بلکې دغه د کفري نړۍ د پوځې ځواکونو ناټو او آيساف قوتونه دلته د الله تعالی په خاص نصرت د مجاهدينو د مټو په زور په ګونډو شوي دي، نو د افغانستان د بهرنيو دښمنانو تر څنګ محدود کورني دښمنان هم ان شاءالله نشي کولی چې دغه د مؤمن باتور ولس خوږ تاتوبی افغانستان د تجزيې سره مخ کړي. د اسلام او افغانستان د بهرنيو دښمنانو تر څنګه داخلي منافق صفته دښمنان به يې هم تل مخ توري او ناکام وي.

***

ساتو يې په سرو وينو
دا د شهيدانو کور دا د باتورانو کور

**د سعدي پندونه**

مشك هغه دي چې په خپله وږمه ولري، هسې نه چې عطر پلورونکی درته ووايي، هوښيار د مشکو شيشه ده، چوپ وي خو هنر يې څرګندېږي، ناپوه د مداري ډول دی اواز يې لوړ دی خو په منځ کې تش دی.

***

څوك چې تر ځان د لوړې پوهې له څښتن سره ددې لپاره بحث او جدال کړي، چې خلك يې د پوهې څښتن وګڼي، نو په دې وپوهېږئ چې ناپوهه دی.

***

له بدو خلکو له بدۍ پرته بل څه نه زده کېږي.
ليوان پوستين ګنډي نه، څيرې کوي يې.

***






مِنَ الْمُؤمِنِیْنَ رِجَال صَدَقُوْا مَاعَاهَدُواللهَ عَلَیْهِ ((الایه))
شهید سردار خان حامد لالا

ابو عبدالله

شهید سردارخان د نن نه شاوخوا ۴۷ کاله وړاندې د ننګرهار ولایت د پچیراګام ولسوالۍ د سلیمان خیلو په تنګي سیمه کېدې فاني دنیا ته سترګې وغړولې، پچیراګام ولسوالي د سپین غر په لمنه کې پرته ده او سلیمان خیل د دغې ولسوالۍ یو مشهور او مجاهد قوم دی، هسې خو د تورې بورې د نوم سره هر څوک اشنا دي خو دومره یادول یې اړین بولم چې وایم توره بوره د روسانو سره د جهاد په وخت کې د اسلامي حزب د مؤسس مرحوم محمد یونس خالص بابا رحمه الله د مبارزې او حماسې تود سنګرو، چې له هماغه وخته یې تر اوسه خپل اهمیت ساتلی او ډیر خلک ورسره بلد دي.
د تورې بورې په نامه سیمه چې د سلیمانخیلو تنګي په څوکه کې موقیعت لري، د پچیراګام ولسوالۍ د مربوطاتو څخه ده

توره بوره چې د تاریخ په اوږدو کې د هر یرغلګر پر وړاندې د کلک او نه ماتیدونکي مرکز په توګه پاتې شوې ده. د روسي استعمار څخه رانیولې بیا تر ننني امریکایي استعمار پورې دغه سیمه دمجاهدینو لپاره د تربیت او د دښمن د ځپلو مهم مرکز ګرزیدلی.
د تورې بورې د درې او سیدونکي خلک کلک مجاهدین او د مجاهدینوورونو یې په هر وخت کې مرسته او کومک کړی دی. مرحوم مولوی صاحب خالص بابا (رح) د روسي استعمار د یرغل په وخت کې د تورې بورې تنګي په خوله کې د مجاهدینو د تنظیمولو او پر دښمن د چریکي او جبهه یي بریدونو په موخه دلته مرکز تأسیس کړ.
دغه مرکز چې په ابتداء کې کوچنی، خو د وخت په تیریدو سره یې دټول افغانستان د مجاهدینو لپاره د جهادي مدرسې حیثیت غوره کړ.
په دغه مرکز کې به مجاهدینو ته د جهادي عقیدې، جهادي فکر او پر دښمن د یرغل منظم درسونه او پلانونه ورکول کېدل د تورې بورې جهادي مرکز په برکت د هیواد په لرې او نیږدې سیمو کې ډیر په خدای مین او سپیڅلي مجاهدین تربیه او د روسي او کمونیستي پوچې مفکورې پر ضد تر اخره وجنګیدل او د هیواد په تاریخ کې یې د شهادتونو او قربانیو نوی باب کېښود. ددې مدرسې د ځوانانو په شهادتونو زمونږ تاریخ او ولس افتخار کوي. د تورې بورې د دې جهادي مرکز برکت وو چې په ټوله نړۍ کې مجاهدین په یوه فکر راغونډ او په ټوله نړۍ او په خاصه توګه افغانستان کې یې د جهادي فعالیت نهضتونه رهبري کړل.
د تورې بورې جهادي مدرسې برکت وو چې په هیواد کې یې د جهاد روان مقاومت ته قوت ورو بانښه او هم یې د

راتلونکي لپاره د جهادي مدرسې شاګردان وروزل، ښاغلی سردار خان حامد هم د همدغې مدرسې شاګرد وو چې په حامد لالا هم مشهور دی، نوموړی د خپل عمر په څوارلس کلنۍ کې د جهاد سنګر ته ولاړ، شهید سردارخان د شهید شیخ ملا خیل رحمه الله د جبهې د لومړنیو مجاهدینو له ډلې څخه و، لومړنۍ مبارزه یې د خپل ورور تر قیادت لاندې پیل کړه، ورور یې هغه وخت د تورې بوړې د جهادي سنګر د مجاهدینو یو تکړه مجاهد او دځو تنو مجاهدینو مشري ور تر غاړې وه.

په کال **۱۳۵۷** هـ ش کې یې د خپلې کورنۍ سره یوځای د هجرت دیار ته هجرت وکړ، شهید سردارخان د وخت د یرغلګرو(روسانو) او کمونیستانو پرضد په بیلابیلو سیمو کې په عملیاتو کې شریک شوی و، جهاد یې خپله ایماني او وجداني فریضه بلله، له((زیر سر)) نه یې، چې د تورې بوړې د مرکز شرق طرف ته لوړه څوکه وه د دښمن هوایي او ځمکني حرکات څارل، په دې ځای کې د دښمن د هوایي ځواک ضد وسله ځای پر ځای شوې وه چې شپه او ورځ به د دې حاکمې نقطې څخه مجاهدینو د دښمن څارنه کوله، دا هغه ځای و چې د روسي یرغلګرو ډیری الوتکې له دې ځای نه په نښه او ویشتل شوې دي.

شهید سردارخان(حامدلالا) د هغو قهرمانو مجاهدینو له ډلې نه و چې د روسانو جیټ طیاره یې په ډزو وویشته او بیا هغه طیاره د زاوې په غرنۍ سیمه کې راپرېوته. همداشان مرحوم شهید د روسانو سره د مبارزې په لړ کې د خپلو مجاهدینو ورونو سره یوځای د جلال آباد په هوایي ډګر او ۸۱ یمه فرقه په عملیاتو کې هم برخه اخیستې وه، مرحوم شهید که له یوې خوا د جلال آباد په هوایي ډګر د توغندیو په توغولو کې فعاله ونډه لرله نو له بلې خوا یې د چپرهار ولسوالۍ په بیلابیلو سیمو کې په زمیني عملیاتو کې هم برخه اخیسته.

مرحوم شهید په کال **۱۳۶۷** ه ش کې د جهادي مبارزې په لړ کې خوست ولایت ته ولاړ، د ستر مجاهد محترم الحاج مولوي جلال الدین حقاني حفظه الله تر قیادت لاندې د سلمان فارسي رضي الله عنه په جبهه کې د پیاده کنډک قوماندان وټاکل شو، د خوست ولایت په بیلابیلو سیمو

کې یې د دښمن پرضد پراخو عملیاتو کې برخه واخیسته، لومړی یې د همدې ولایت د ((تورې غاړې)) سیمه ایزه پوسته فتحه کړه، د دې پوستې د فتحې پر مهال پخپله شهید حامد لالا هم په مټ مرمۍ وخوړه او زخمي شو، د تداوۍ نه وروسته بیرته خپلې دندې ته راوګرځیده.

خوست ولایت چې د سترې او تاریخي فتحې شاړګ و، شهید د دې ولایت په فتحه کې ډیر تکلیفونه وګالل او په میړانه یې مبارزه وکړه، د ډاکټر نجیب د کمونیستي نظام په اوخرو کې شهید سردارخان د محترم الحاج مولوی جلال الدین حقاني حفظه الله په امر د نوي جهادي کاروان سره د جلال آباد د لویې لارې د خلاصون په نیت بیرته جلال اباد ته روان شو، په دې عملیاتو کې یې هم د یو قوماندان په صفت دنده اجراء کوله، د جلال آباد تر فتحې وروسته همدلته په توره بوره کې د نورو مجاهدینو سره پاتې شو. مرحوم شهید سردارخان د کلاشینکوف نه نیولې بیا تر هاوان، بي ام۱۲ مسلکي استاد هم پاتې شوی و، په جلال آباد کې خو یې د کمونیستانو خوبونه ور حرام کړي وو، د جلال آباد له فتحې وروسته یې د همدې ولایت په څلورمه لیوا کې دنده اجراء کوله، د اسلامي امارت په راتګ سره نوموړی په ( قطعه منتظره ) کې د ډلګي مشر په حیث د هیواد په بیلابیلو سیمو کې د اسلامي امارت دمخالفینو په خلاف وجنګیده، د ښې سابقې له مخې نوموړی د خوست د مجاهدینو لخوا د ننګرهار د ولایت مقام ته د یو ښه متقي او میړني مجاهد په حیث ور معرفي شو، د اسلامی امارت دمخالفینو پرضد یې خپله مبارز هجاري وساتله، د دې مبارزې په لړ کې د هیواد په بیلابیلو سیمو لکه کنړ، لغمان، کابل، پروان، کاپیسا او ځینې شمالي ولایاتو کې په عملیاتو کې شریک شوی و.

د صلیبي یرغل په وخت کې یې په توره بوره کې محاصره عربو مجاهدینو سره ډیره مرسته کوله، شپه او ورځ به د عربو مجاهدینو په خدمت بوخت و، دا حالت واقعاً ډیر سخت و، خو مرحوم شهید سردارخان د اسلام او جهاد په

مینه مست، له دنیاوي تکالیفو بې پروا د خپلو عربو مجاهدینو ورونو سره یوځای و، دوی ته به یې خوراک، څښاک او پوښاک برابرو، په همدې تور د کابل ګوډاګي اداري ته هم مطلوب و، نوموړي وروسته له هغې چې حالات ډېر خراب شول او توره بوره د صلیبیانو تر قبضې لاندې راغله، یو ځل بیا د هجرت دیار ته ولاړ، خو په کرار ناسته یې عادت نه وه، د نوي جهادي بهیر په لړ کې یې د توره بوره جهادي محاذ د مجاهدینو سره یوځای د صلیبیانو پرضد، چې دا وخت یې مشري د مرحوم خالص بابا رحمه الله د زوی مولوي انورالحق مجاهد حفظه الله په لاس کې وه، د جهاد سنګرونو ته ور ودانګل، په کونړ او ننګرهار کې به یې د ژوندي پاتې مجاهدینو څخه د میړانې ډیرې کیسې واورئ، چې تر اوسه یې په میړانه مجاهدین او سیمه ییز خلک فخر کوي. د جبهه ای او چریکي جګړو استاد شهید سردارخان د اسلامي امارت لخوا په تشکیلاتي نظام کې د پچیراګام ولسوالۍ معاون وټاکل شو، نوموړی د توري بوري جهادي محاذ یو تکړه اوپیاوړی مجاهد و، شهید به ماته پخپله ویل چې د جهاد سره مې بې کچې مینه ده، غواړم جهاد وکړم او په همدې لاره کې شهید شم، تر یو څه وخت وروسته ورته د مشرانو مجاهدینو له لوري یو دلګی منظور شو چې په تکړه مجاهدینو مشتمل و، د پچیراګام ولسوالۍ په مربوطاتو کې به یې عملیات تر سره کول، په دې ولسوالۍ کې د دښمن مرکزونه ترې یو هم په ارام نه و، مرحوم شهید خپل ورور شهید سیدرحمن رحمه الله چې تر ده کشر و، هم په خپله جهادي مبارزه کې ورسره شریک کړ، وروسته تر څه وخته یې ورور د شهادت لوړ مقام ته ورسیده.

شهید سردار خان د ملګرو په منځ کې په تقوی او دیانتدارۍ سره مشهور، ډېر حلیم او بردباره، د غوره او ښایسته اخلاقو څښتن و، همیشه به یې د ملګرو سره په ډیره مینه چلند کاوه، دنګه ونه ښایسته نوراني قواره او له خندا ډک ورین تندي یې درلود، که څه هم د مالي لحاظه یې وضعه ښه نه وه، مګر په میلمه پالنه کې ډېر اخلاصمند او چالاکه و، ما به ډېر کرته لیدل چې د کور مخ ته به یې پوزې هوار کړي او د میلمنو د راتګ انتظار به یې کاوه، خورا سخي شخصیت و.

اکثره وخت به روژه و، حتی چې د جهاد په تودو او سختو سنګرونو کې یې هم روژه نه ماتوله، ملګرو به ورته په جهاد کې د روژې د ماتولو ویل، خو مرحوم شهید به ویل: دا سمه ده چې مجاهد او مسافر ته روژه ماتول جایز دي، خو که د جهاد په سنګر کې روژه ونیول شي د هغې فضیلت هم ډېر لوی دی، که څه هم چې شهید سردارخان پخپله لیک او لوست نشو کولای، خو د عالمانو او طالبانو سره ناستې له هغه نه یو با عمله عالم جوړ کړی و، ډېر څه یې له علماؤ نه اوریدلي او په عمل کې پلي کړي و، په همدې سبب ورته نورو مجاهدینو په درونه نظر کتل، د علم او عالمانو سره یې بې کچې مینه وه. شهید سردارخان د پچیراګام ولسوالۍ په ګریخیلو سیمه کې د دښمن پوستې تر کلکې محاصرې لاندې ساتلې وې، وروسته چې د دښمن د نورې قوې د رارسیدو نه خبر شو نو په لاره کې د دښمن د راتګ په انتظار کیناست، کله چې دښمن سیمې ته راورسیده نو د دواړو خواو تر منځ مخامخ شدیده جګړه ونښته، د همدې جګړې په پیل کې چې دښمن ته یې هم سخت مالي او ځاني زیانونه واړول، پخپله سردارخان( حامدلالا ) هم په(کال۱۳۹۲ د سنبلې د میاشتې په۳۱ )نیټه د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

انا لله و انا الیه راجعون

روح دې ښاد او یاد دې تل وي




فاتح کاروان

برما يو له هغه هيوادونو څخه ده چې پکې ميشت مسلمانان د بوداييزم د وحشتونو په اور سوځي، د ۱۹۴۸ ز کال د جنوري په ۴ نيټه کله چې برما له انګليسي استعمار نه ازادي واخيسته نو دغه هيواد د چينايي بوداياتو د پام وړ سيمه وګرځيده، په په برما کې مسلمانان د اقليت او سيدونکو له جملې څخه دي، که د دې هيواد جغرافيه وکتل شي نو معلوميږي چې مسلمانان د دې هيواد ۵ سلنه جوړوي، په دغه هيواد کې ميشت مسلمانان سنيان دي او اوسنۍ وضعه يې ډيره د تشويش وړ ده.

بودايان چې د چين، کورياګانو، جاپان، اسرائيلو او امريکا کلک ملاتړ ورسره دی له کلونو راهيسې په برما کې د مسلمانانو په عام وژنه بوخت دي، تر اوسه پورې په دغه هيواد کې په لسګونو زره مسلمانان په خورا وحشت سره په شهادت رسول شوي او د مسلمانو ميرمنو عزتونه لوټ شوي دي، کله چې په برما کې د بودايي درنده ګانو له خوا د مسلمانانو عام وژنه پيل شوه نو په لومړي ځل ۵۰۰۰ تنه مسلمانان په شهادت ورسيدل، په کال ۲۰۰۹ ز کې کله چې بودايي پوځي نظام د مسلمانانو عام وژنه پيل کړه نو په سلګونو زره مسلمانې کورنۍ مهاجرت ته مجبورې شوې، دوی په لمړي سر کې د بنګله ديش هيواد ته چې د برما تر ټولو نږدې ګاونډي دی هجرت وکړ مګر د بنګله ديش د سيکولر پوځ لخوا ورسره هغه عمل وشو چې د دغو مظلومو مسلمانانو هيڅکله دا تمه نه وه، پيښه داسې وشوه، کله چې د برما مسلمانان د بنګله ديش سرحدي سيمو ته ورسيدل نو د بنګله ديش سرحدي عسکرو دغه مسلمان مهاجرين په زور بيرته مجبور کړل چې برما ته ستانه شي او وروسته له هغې چې ياد مهاجرين برما ته ستانه شول، نو د برما بودايانو ورته پيغورونه ورکول او يوځل بيا يې د مسلمانانو په قتل عام شروع وکړه، تر اوسه پورې د برما ۲۲ لاکه کورنۍ کډوالۍ ته مجبورې شوي دي.

دلته د افسوس خبره داده چې ولې اسلامي نړۍ د برما د مسلمانانو په عام وژنه داسې مجرمانه پاليسي غوره کړې ده او ولې نه غواړي چې د برما د مسلمانانو مرسته

وکړي، علتونه یې شاید ډیر وي، خو یو له مهمو علتونو یې دا دی چې د برمایي بودایانو تر شا د امریکایانو کلک ملاتړ موجود دی او دا خبره اوس له هیچا پټه نه ده چې په اوسني دور کې پر اسلامي هیوادونو مسلط نظامونه د امریکایانو لاس په نامه غلامان او لاسپوڅي دي، ځکه خو اول دوی ته د برما د مسلمانانو زړه بوږنوونکي فریادونه کوم درد نه ورکوي او که کوم تش په نامه اسلامي حکومت وغواړي چې د برما د مسلمانانو سره مرسته وکړي نو هغه هم له دې ویرې چې امریکایان ترې ناراضه نشي خاموش دي!!

د یهودو او نصاراو وحشتونه د اسلامي نړۍ پر وړاندې اوج ته رسیدلي او نن ورځ په درسته نړۍ کې داسې هیواد نشته چې هلته مسلمانان یا خو د کفارو او یا هم د خپلو منافقو حاکمانو له خوا تر ظلم او جبر لاندې نه وي او نه هم داسې کوم اسلامي هیواد شته چې هغه په بشپړ ډول د کفارو تر مستقیم او یا غیر مستقیم استعمار لاندې نه وي راغلی، غلامې حاکمانو شروع کړې ده، ایمانونه حاکمانو پلورلي او زور یې د اسلامي امت له عامو مسلمانانو نه وځي!!

موږ او تاسې په داسې یوه زمانه کې ژوند کوو چې د مسلمانانو پر وړاندې د نړیوال کفر د ظلمونو او وحشتونو کیسې اوس یوه عامه ورځنۍ موضوع ګرځیدلې ده، ملګري ملتونه، د بشري حقوقو د د دفاع ټولنې او د خیر ښیګڼو اداري یواځې هغه څه کوي چې امریکا او اسرائیل یې غواړي، نه چا د برما د مظلومو مسلمانانو پوښتنه وکړه او نه هم چا د هغوی غږ تر نړیوالو ورساوه، رسنیو هم په برما کې د بودایانو په وحشتونو سترګې پټې کړې دي او کومې رسنۍ چې کله نا کله د برما د مسلمانانو کوم خبر خپروي نو دا به هغه رسنۍ وي چې په نړیوالو یا مشهورو رسنیوکې ځای نلري، ځکه خو یې غږ په اسانۍ تر نورو انسانانو نه رسیږي، که د برما د مسلمانانو پر وړاندې د بودایانو وحشتونه هم داسې دوام ولري، نو لکه څنګه چې دا سلسله تر منځنۍ افریقا ورسیده، همداسې به تر نورو هیوادونو هم پراخه شي، د اسلامي هیوادونو له اتحادیې نه هم د اسلامي امت امیدونه پرې شوي دي او اوس مهال خو د اسلامي هیوادونو نړیوال کانفرانسونه دومره بې نتیجې او بې ګټې دي چې هسې د وخت او پیسو له ضیاع پرته کومه بله لاسته راوړنه نلري نو د مسلمانانو د حال به څه پوښتنه وکړي؟!

غربي رسنیو، تنشیري ټولنو او په غرب کې روزل شوو ایمان پلورونکو همیشه هڅه کړې ده چې مسلمان امت له خپل مسیر نه خطا کړي، هغوی هڅه کوي چې هر مسلمان باید په دې نړۍ کې یواځې د خپل شخصي ژوند په فکر کې واوسي او هغه رشته چې د نړۍ ټول مسلمانان سره ورونه او خویندې ګرځوي، باید له منځه لاړه شي او که له منځه لاړه نشي هم نو دومره باید کمزورې شي چې یواځې سمبولیکه بڼه ولري، په تأسف سره باید ووایم چې لویدیځ تر یوه ځایه خپل دغه شوم هدف تر لاسه کړی دی، د بیلګې په ډول د فلسطین موضوع وګورئ هلته اوس هم هره ورځ مسلمانان شهیدانیږي، مسجد اقصی اوس هم د یهودو تر تسلط لاندې دی، مګر نه خو په اسلامي امت کې اوس هغسې رعب او دبدبه پاتې ده چې ویل به یې: فلسطین فی قلوبنا، او نه هم د مسجد اقصی د ازادۍ فکر او احساس دومره غښتلی دی چې یهودیانو ته تشویش پیدا کړي او تر کومه ځایه چې د اسلام د مجاهدینو خبره ده نو هغوی هم د خپلو ولسونو له پراخ ملاتړ نه برخمن نه دي، زه یې تاسو ته یوه بیلګه ذکر کوم د ۲۰۱۳ م کال هغه شپې ورځې خو به مو یادې وي چې

صیهونیستان د فلسطین د غزې ښار تر اور لاندې نیولی و، بریښنا، اوبه او خوراکي توکي یې پرې بند کړي وو، په همدې حساس وخت کې هم د فلسطین عامو خلکو خپل ځانونه اصلاح نه کړای شول، ما له یوه فلسطیني پوښتنه وکړه چې: ښاغلیه! دلته په افغانستان کې ستاسو په غم ډیر خلک له تاسو سره شریک دی ستاسو له حاله ناخبر نه دي، مگر ماته یوه پوښتنه پیداشوې ده او هغه دا چې کله موږ ستاسو د مظاهرو، چې تاسې یې د یهودیانو پرضد کوئ، عکسونه او ویډیو گانې گورو نو ستاسو د ښځینه طبقې ډیره برخه اسلامي حجاب نه مراعت کوئ د سړیو سره اوگه په اوگه په مظاهرو کې برخه اخلي، مگر حجاب ته پام نه کوي دا ولې؟ هغه ځواب راکړ: موږ له افغانانو ډیره مننه کوو چې زموږ په درد او غم کې راسره یوځای شریک دي، او کومه چې د حجاب خبره ده نو مهمه داده چې موږ باید د امریکا او اروپا سره ځانونه برابر کړو، تر څو پرمختگ وکړو او نور له دې کړاوونو خلاص شو!!

دا هغه خبره وه چې ماته یې یو ټکان راکړ او ما فکر وکړ چې دا خلک لا هم خیال پلاونه وهي، دوی تر اوسه دا نه ده درک کړې چې پرمختگ باید په کومه برخه کې وشي او څه ډول وشي.

که چیرته فلسطیني مسلمانانو د جهاد سره سره د اسلام نور احکامات په پوره ډول پر ځان منلای نو، اوس به یې حالت تر دا اوسنی وضعې ډیر ښه ؤ، خو ستونزه په دې ځای کې ده چې نن سبا مسلمانان د کفارو سره د علم او پرمختگ په ډگر کې د مقابلې اصلي لاره غلطه کړې ده، ډیر ساده لوحه او د غرب د تبلیغاتو تر اثر لاندې راغلي مسلمانان داسې فکر کوي چې که چیري یې دوی د کفارو په څیر خپل صورت او سیرت برابر کړي نو ډیر پرمختگ به یې کړی وي، خو په حقیقت کې یوه ستره مکرره اشتباه کوي.

بله خبره چې د برما د مسلمانانو په شمول یې ټول مسلمان امت ته اوس سزا رسیږي هغه د جهاد ترک کول دي، ځکه چې جهاد د اسلامي امت د عظمت او عزت تضمین ورکوي، مگر په ډیرو اسلامي ټولنو کې مسلمانانو له جهاد نه غفلت اختیار کړی چې دادی نن یې د بدو عواقبو سره مخ دي.

د برما، منځنی افریقا، صومالیا، چیچنیا، مالي، فلپین، الجزایر، افغانستان، فلسطین، سوریا، عراق، سوډان او ځینو نورو هیوادونو مسلمانان په داسې حالت کې د ظلم او جبر تر تیغ لاندې ژوند کوي چې په خپله خاوره، خپل کور او خپل هیواد کې یې حقوق غصب شوي دي، یا د نړیوال کفر تر مستقیم او یا غیر متسقیم اشغال لاندې دي، همدغه ټولو بدبختیو ته په پام سره وایو چې نور نو باید د اسلامي امت مشران، کشران، نارینه او ښځینه، عوام او خواص، عالمان او امیان په یوه اتحاد او اتفاق سره یو تر بله لاسونه ورکړي، خپل منځي اختلافات او جنگ جگړې ختمې او ټول پام یو اځې اصلي محاذ ته واړوي چې، هغه د نړیوال کفر څخه د خپلو ځمکو ازادي او د یوه نړیوال اسلامي خلافت قیام دی.

هغه سړی چې مېړانه نه لري د ښځې په بڼه دی او هغه عابد (صوفي پیر فقیر) چې تمه لري لار وهونکی غل دی.

★★★

الله تعالی د خلکو عیبونه ویني خو پټوي یې، گاونډی هېڅ ویني هم نه خو بیا یې هم عیبونه راڅرگندوي. (سعدي)

# هندو سفير د ديموکراسی بله ډالی

اکرام الدين کامل

څه وخت وړاندې رسنيو راپور ورکړ چې حامد کرزي د کاناډا لپاره يو هندو «شام لال بتيجه» سفير ټاکلی او له پرون راهيسې يې رسما په کار پيل کړی.

يو شمېر سيکولر افغانانو ددې خبر په اوريدو ډېر خوښ دي، دليل يې دا دی چې هندو د افغانستان تبعه دی، بايد چې د افغانستان نمايندګي په نورو سيمو کې وکړي او دوی ته بايد هومره حقوق ورکړل شي څومره چې افغان مسلمان ته ورکول کيږي.

له هغه وخته چې مسلمانان کمزوري شوي او ټوله تکيه يې په دنيا کړې، زيات شمېر شرعي احکام يې يا خو څنګ ته کړي او يا پرې بيخي عمل نه کوي، ددغو څخه يو هم د ذميانو احکام دي. که څه هم په نړۍ کې د «ذمي او غير ذمي» نظريه په عملي بڼه له منځه تللې، خو سره له دې هم په زيات شمېر مدارسو او پوهنتونونو کې د «ذمي» پورې مربوط احکام لوستل کيږي.

په دې وروستيو کې ځينو کړيو دا هڅې پيل کړي چې څنګه د «ذمي او غير ذمي» احکام چې لا هم په کتابونو کې شته دي د خلکو له ذهنونو وباسي، ددې لپاره يې په منظمه توګه کار پيل کړ، لومړی يې د مکتبونو، مدرسو او پوهنتونونو له نصابه د «ذمي» احکام وويستل. وروسته يې داسې نظريه وړاندې کړه چې ګوندې دوی «ذميان» نه بلکې «د ملت خلک» دي، دوی په دې اړه مقالې او کتابونه وليکل چې د «ذمي او غير ذمي» درسونه پخواني دي او اوسني وخت (ماډرنيزم دور) سره اړخ نه لګوي. څوک چې په يوه معينه ځمکه کې چې ځانګړي حدود ولري د ملت برخه ګڼل کيږي او د ټولو نورو اتباعو په څېر ټول هغه حقوق ورکول کيږي چې نور يې اخلي. همدا لامل دی چې په زيات شمېر اسلامي هېوادونو کې مسيحيان، هندوان، سکان او آن يهوديان په سترو سترو څوکيو ناست دي.

ذميان څوک دي؟

فقهاو د «ذمي» تعريف داسې کړی: ذميان هغه کفار دي چې په اسلامي هېواد کې اوسيږي او اسلامي هېواد له دوی سره تړون کړی وي، چې ددوی په سر، مال، ناموس او په دين به هيڅوک تجاوز نه کوي، اسلامي هېواد به ددغو خلکو د سر، مال او ناموس ساتنه کوي او دغه کفار به ددې په مقابل کې «جزيه» يعنې ټيکس ورکوي، دغه تړون چې د کفارو او اسلامي هېواد تر منځه کيږي «عقد الذمه» ورته وايي او دغو کفارو ته «ذميان» وايي.

اوس پوښتنه دا ده چې آيا کافر کولای شي د مسلمانانو مشر او نماينده وټاکل شي؟ او آيا کافر کولای شي د مسلمانانو په داخلي چارو کې کار وکړي؟

د قرآن زيات شمېر دلايل په دې اړه موجود دي چې کافر «ذمي او غير ذمي» د مسلمانانو مشري په هيڅ يو صورت سره نشي کولای او که څوک کوم کافر د مسلمانانو مشر، نماينده او يا بل کوم مسئوليت ورسپاري نو د يوې سترې ګناه مرتکب کيږي.

په دې اړه زيات شمېر دلايل موجود دي چې په لنډه توګه يې دلته وړاندې کوو:

۱- د کفارو سره ملګرتیا څخه منع
په دې اړه خورا زیات شرعي نصوص راغلي او هر ډول د شرعي نصوصو اسلوب یو له بله تغییر دی، ځینې ځایونو کې ددې منع راغلې چې کافر سره «دوستي» ونه کړل شي، ځینې ځایونو کې راغلي چې کافر د کافر دوست او ملګری دی، ځینو نورو ځایونو کې راغلي چې مسلمان باید د مسلمان دوست او ملګری وي نه د کافر.
د فقهاو په وینا د کفارو سره «دوستی» څخه چې هر ځای منع راغلې مراد ترې دا نه ده چې له زړه دې ورسره دوستي نه کوي خو که په عمل کې یې وکړي باک نه کوي، بلکې له دوی سره به نه په زړه کې او نه هم په عملي توګه دوستي کوي.
قرآن وایي: «"لا تتخذوا عدوی وعدوکم أولیاء تلقون إلیهم بالمودة" زما او ستاسو دښمن په دوستۍ مه نیسئ... چې مسلمان د کافر سره له دوستۍ څخه منع شوی نو دا خو په هر صورت منع ده چې کافر دې په مسلمان حاکم وي او یا دې هم د سفیر په توګه نورو هېوادنو ته ولیږل شي او د مسلمان هېواد په داخلي چارو کې دې ونډه واخلي.
امام رازي رحمه الله فرمایي چې ابو موسی الأشعري رضي الله عنه عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته وویل چې یو مسیحي زما مرزا او کاتب دی، عمر رضي الله عنه ورته وویل چې هلاک شې، د الله دا قول دې نه دی اوریدلی چې «یا أیها الذین آمَنُوا لاَ تَتَّخِذُوا الیهود والنصاری أولِیَاء» مسلمانانو یهود او مسحیان په دوستۍ مه نیسئ، ابو موسی الاشعري رضي الله عنه وایي چې ما ورته وویل دهغه خپل دین دی او زما یې د مرزا توب او لیکوالۍ سره کار دی، عمر رضي الله عنه ځواب ورکړ چې دوی خدای سپک کړي نو اکرام یې نه کوم، چې الله ذلیل کړي نو عزت یې نه کوم او چې الله رانه لرې کړي نو ځانته یې نه رانیږدې کوم، ابوموسی وایي ما ورته وویل چې د بصرې ښار له ده پرته نېمګړی دی، نو عمر رضي الله عنه ورته وویل چې مسیحي مړ شو بیا به څه کوې؟ له همدا وسه کار وکړه او په دې اړه له بل چا مرسته واخله.
له دې اثر څخه څرګندیږي چې «کافر» د مرزا توب لپاره نیول جواز نه لري نو څنګه بیا دا کیدلای شي چې یو هندو دې د یو اسلامي هېواد چې ۹۹.۴٪ خلک یې مسلمانان وي سفیر ټاکل کیږي! همدا راز دا نتیجه هم په لاس راځي چې کافر ته په اسلامي هېواد کې هیڅ یوه څوکۍ ورکول جواز نه لري، ولو که هر څومره ضرروت ورته وي.
ابو حیان رحمه الله ددې آیت «یا أیها الذین آمنوا لا تتخذوا الکافرین أولیاء من دون المؤمنین» په تفسیر کې فرمایي چې دغه آیت ددې دلیل دی چې کافر په هیڅ یوه لاره په مسلمان حاکم کیدلای نشي.
۲- کافر سره «د راز ملګرتیا»
الله جل جلاله فرمایي:
یا ایها الذین آمنوا لا تتخذوا بطانة من دونکم لا یألونکم خبالا ودوا ما عنتم قد بدت البغضاء من أفواههم وما تخفي صدورهم أکبر"
مسلمانانو د خپل مسلمان پرته نور راز دار «یعنی چې راز ورسره شریکوئ» مه نیسئ....
ابن حجر رحمه الله فرمایي چې أبو عبیدة د «بطانة» مانا په «دخلاء» سره وکړه او «دخلاء» هغه چاته وایي چې د مشر سره پټ کیني او د راز خبره ورسره شریکه کړي.
په دې آیت کې الله جل جلاله له دې څخه په کلکه منع کړې چې کافر دې مرستیال او مشاور وټاکل شي او د مسلمانانو په کارونو کې ترې مشوره واخیستل شي.
پاتې شوه د سفیر ټاکل، چې د یو مسلمان ملت نماینده ګي دې کوي، خو بیخي لرې خبره ده.
۳- کفارو ته میلان
الله جل جلاله فرمایي: «ولا ترکنوا إلی الذین ظلموا فتمسکم النار وما لکم من دون الله من أولیاء ثم لا تنصرون» یعنی هغو کسانو ته میلان مه کوئ چې ظلم یې کړی. فقهاء وایي چې د «ظلموا» نه مراد کفار دي،

ځکه بل ځای ددې شرحه شوې چې «والکافرون هم الظالمون» کافران ظالمان دي او «ان الشرک لظلم عظیم» شرک عظیم او ستر ظلم دی.
مخکې مو چې څومره آیتونو او حدیثونو ذکر کړل له ټولو څخه دا نتیجه په لاسه راځي چې په مسلمان د کافر مشرې په هیڅ صورت جواز نه لري ځکه مسلمان او اسلام پورته او کفر او کافران ټیټ او ښکته دي.
هندو ولې د افغانستان سفیر وټاکل شو؟
د افغانستان د اوسني اساسي قانون څلورمه ماده کې راغلي چې «د افغانستان ملت عبارت دی له هغو ټولو افرادو څخه چې د افغانستان تابعیت ولري.
د افغانستان ملت له پښتون، تاجک، هزاره....څخه جوړ دی.»
په دغه ماده کې یو ځای دا ذکر شوي چې پښتون، تاجک، هزاره، ازبک.... د افغانستان ملت دی او دوی به د افغانستان له تابعیته نه محرومیږي. دلته چې خبره د تابعیت شوه نو هندوان، سکان، مسیحیان او نور ټول د افغانستان تابعیت لرونکي دي نو ددې پر اساس څومره حقوق چې نور لري دوی هم ترې برخمن دي.
هندو کولای شي پر هر یوه اداره کې کار وکړي، هغه که د سفارت وي، که د وزارت وي او که نور... ځکه اساسي قانون دا حق ورکړی دی.
دا چې «شام لال بتیجه» سفیر ټاکل شوی نو د اساسي قانون سره سم قانوني ټاکل شوی، ځکه اساسي قانون وایي چې د افغانستان د ملت د اتباعو تر منځ هر ډول امتیاز او تبعیض منع دی. هندو او مسلمان، ښځې او نر تر منځ فرق باید ونه کړل شي.
اسلام څه وایي:
مخکې مو د «ذمي» په احکامو کې یادونه وکړه چې هیڅکله یو کافر په مسلمان حاکم کیدلای نشي، فقهاء وایي چې د مسلمانانو په کارونو کې هیڅکله کافر ته د مداخلې کولو حق نشته، ځکه دوی نجس دي او نجس څېزونه باید وغورځول شي.

قرآن وایي: «**ولن یجعل الله للکافرین علی المؤمنین سبیلا**»
هیڅکله (هرګز) الله نه ده ورکړې کافرانو ته په مسلمانانو لار (غلبه).
بله حدیث کې راځي چې «الاسلام یعلي ولا یعلی علیه» اسلام اوچت او حاکم دی او دی ټیټدای (محکوم) نشي.
لنډیز او پایله:
په پای کې دومره ویلای شو چې کافر هیڅکله د مسلمان مشرې نشي کولای او نه هم کافر د مسلمانانو په داخلي چارو کې کار کولای شي.
دا چې وضعي قوانینو جواز ورکړی دا د اسلام دین د واضحو او ښکاره احکاماتو سره په ټکر کې دی او هیڅ شرعي جواز نه لري.
اساسي قانون د نورو په لاس جوړ شوی، او «تحکیم بغیر ما أنزل الله» او د الله له حکمه پرته په نورو څه حکم کول کفر، ظلم او فسق دی. کافر د مسلمان ملت استازی نشي کیدای او کافر د مسلمان هېواد نماینده نشي ټاکل کیدای.
یو بله وروستۍ پایله دا هم په لاس راځي، چې برحاله اساسي قانون غیر اسلامي او د اسلام له واضحو احکامو سره په ټکر کې دی، ځکه اسلام وایي چې مؤمن باید حاکم وي او د مسلمان په کارونو کې باید نور څوک کار ونه لري اساسي قانون وایي نه؛ کافر کولای شي د مسلمانانو مشر شي او د مسلمانې ټولنې نمایندګي وکړي، قرآن وایي چې کافر او مسلمان سره برابر نه دي، اساسي قانون وایي چې د ملت ټول اتباع سره برابر دي، قرآن وایي چې عزت الله، د هغه رسول او مسلمانانو دی؛ اساسي قانون وایي نه؛ عزت کافر ته دی. قرآن وایي تشریعي سلطه د الله ده اساسي قانون وایي چې نه خلک باید ځانونو ته خپله شرعه جوړه کړي. والله اعلم

پای

# مجاهدې ولولې

## مرګ مې دې یوسي

سید احسان الله الهام

مرګ مې دې یوسي چې په حقه لار به یون نه کوم
مرګ مې دې یوسي چې له خدایه به مې ډار نه کیږي

مرګ مې دې یو سي چې مظلوم باندې به نه رحمیږم
مرګ مې دې یوسي چې و زړه ته به مې لار نه کیږي

مرګ مې دې یوسي چې غلیم به کوم ډګر وړي رانه
مرګ مې دې یو سي چې سنګر کې رانه ځار نه کیږي

مرګ مې دې یو سي چې قلم به مې شیطان ته کار کړي
مرګ مې دې یو سي چې به دین ته رانه کار نه کیږي

مرګ مې دې یوسي چې الهام ! به وې پر ما سترتیتی
مرګ مې دې یوسي چې ګناه ته به مې شمار کیږي

بدبخته شخص هغه دی، چې خلك یې د ډار او ویرې له امله عزت (درناوی) وکړي. (الحدیث)
د خپل ورور په ستونزو مه خوشحالیږئ کېدای شي، چې الله په هغه رحم وکړي او تاسې پرې اخته کړي. (ترمذي)

## مغرور لښکر

شهید حبیبي رحمه الله

ګیر له هرې خوانه د نړۍ یاغې اوریکې دي
تښتي به په کومه د وتو لارې ترې ورکې دي

هغه زورور هغه مغرور او کبرجن لښکر
مات شو په ګونډو شو او لا هم زاره ترکې دي

هغه پرمخ تللي وسایل یې بې معنی دي هم
ښکاري چې ناکام یې بې پیلوټه هم چورلکې دي

دا وطن شخ بریتي او باتور باتور زلمي لري
ځکه د پردیو له دې خاورې نه پښې سپکې دي

دلته په دې غرو کې د شاهین د حملو ښکار دي
ویستې یې له دې تورو کارغانو نن ښکې دي

ښکاري چې په زغرو او بمونو طیارو نه شوه
ځکه یې د سولې هلې ځلې نن چټکې دي

دلته کوم پردي چې ( حبیبي) په زور راغلي دي
غرونه او درې یې په ککرو باندې ډکې دي

## غزل

عبدالاحمد حماد

د ښکلاوو زرين توري غزلونه
لونګين څوندي پرې پورې غزلونه

د نرګس په څېر د ارګ په سپين ګلدان کې
خدايه! شنه کړې طالب لوري غزلونه
چار- چاپېر ترېنه اغزي، خو مست احساس ته
لکه وي چې په هر لوري غزلونه
راشه وليکو د شنه آسمان پر دړه
سپوږمۍ! تک سپين لکه ستوري غزلونه
په ليدو دې د غزلو پيغمبر شوم
دادی ګوره پرې را اوري غزلونه
جل وهلي مين زړه لره مې کښلي
لکه ستا دزلفو سيوري غزلونه
نقادان يې شوخې سترګې د يار بولي
چې مې وګوري سرزوري غزلونه
غلي- غلي په ښو کې دې، دي غلي
راته ګوره، راته ګوري غزلونه
اې! بس کټ مټ لکه تا چې ځينې اورم
چې څوک وايي په زړه پورې غزلونه
د زړه بام ته مې د خيال کوترو راوړل
ستا له کلي غزل توري غزلونه

د «حماد» د زخمي زړه روی مې دروړي
په بدرنګو به نه پلورې غزلونه

## سپين ارمان

نظام کندهاري

چې تر سپېڅلي سپين ارمانه ورځي
هغه د ژوند له دې جهانه ورځي

دا خو حارث برهان الدين شو شهيد
مُګرم روح يې تر آسمانه ورځي

د استشهاد د مدرسې فارغين
په لوړ تکل تر امتحانه ورځي

ابدي تنده په کوثر ماتوي
څکه خو ستړي او ستومانه ورځي

شيطاني ځالې به ضرور ړنګوي
اتل حارث چې تر ميدانه ورځي

دا په ريښتيا ځي الهي عاشقان
چې له لمبو نه تر جانانه ورځي

تبريکي ورکړئ جنتي حورو ته
ګل د بارودو له نيرانه ورځي

نن يې د بخت ستوری ځلانده ښکاري
ځي خپل هدف ته په مېړانه ورځي

د يار فراق دی دردولی نظام
امېل د اوښکو تر ګرېوانه ورځي

*- پوه هغه دی، چې د الله لپاره تقوی وکړي او له خپل نفس سره محاسبه وکړي. (ترمذي).
*- تر ټولو غوره ښځه هغه ده چې مېړه يې ووينې او پرې خوشحاله شي. (الحديث)
*- ښه ګاونډی هغه دی چې له خپل ګاونډي سره ښه وي. (ترمذي)

## صبر او د مشکلاتو په وړاندې زغم کول

**هره ټولنه د خپل پروګرام او برنامې د عملي کولو په لاره کې ډېر صبر او زغم ته اړتیا لري او ددې ټولنې مشر او قائد د هغه تغییر راوړلو په لاره کې چې دی یې په خپله نوې ټولنه کې راولي، د ډېرو مشکلاتو او خنډونو سره مخ کېږي.**

**ددې لپاره، چې مقرر شوي اهداف تحقق ومومي او هغه پروګرام چې په لاره اچول شوی ښه تطبیق شي، نو دې کار ته باید اول لاره هواره شي یوه مناسبه او طبعي فضا باید رامنځته شي او د داسې فضا او ماحول برابرول ډېرو هڅو او کوښښونو ته اړتیا لري.**

**(فوزي کمال ادهم. الادارة الاسلامية ص ۲۴۵ شروط القيادة فى الاسلام).**

### د صبر تعریف

**امام راغب اصفهاني رحمه الله چې په (۵۰۲هـ) کې وفات شوی، لیکلي دي: (هو حبس النفس على ما يقتضيه العقلُ والشرعُ، او عَما يقتضيان حبسهاعنه)**

**صبر د نفس بندول دي، په هغه شي باندې چې د عقل او شرع تقاضا وي او یا د نفس ساتل دي د هغه څه نه، چې د هغې نه د نفس ساتل د عقل او شرع تقاضا وي.**

**(مفردات ص ۵۲۷۳.)**

اخذ: (د اسلامي حاکمانو اخلاق او صفات)

- ربنتیني مؤمن هغه دی چې د ښو په کولو او په بدو خپه شي. (الحدیث)

- له خپلو میندو او پلرونو سره ښه سلوک کوئ، ستاسې اولاد به هم له تاسې سره ښه سلوک وکړي. (الحدیث)

- څوک چې پر الله پاک او د قیامت پر ورځ باندې ایمان لري نو د مېلمه پالنه دې وکړي. (ابوداؤد)

## د انقلاب زلمیه!

د دنګو غرو شاهین غازي زلمیه
شه پر تا صد آفرین غازي زلمیه
ته ارزو یې ته امید د انقلاب یې
پر تا ویاړو بهترین غازي زلمیه
فرعوني لښکرې بیا درته ګواښېږي
تا جوړ کړې پرې ناورین غازي زلمیه
اې! د سپیني حیدري توري وارثه
یې قاتل د هر بې دین، غازي زلمیه
هر فرمان ته یې لبیک وایه جانانه
د امیرالمؤمنین، غازي زلمیه
د حریت ستوري دې بیا په راختو دي
له ره کلک عزم متین غازي زلمیه
منصور جان اشنا دې یاد ساتي دعا کې
په هر جنګ په هر کمین غازي زلمیه

## جهادي خویونه

ړانده خو نه یو په اغزو ګلونه نه بدلوو
موږ په نیمګړو خوشحالو غمونه نه بدلوو
موږ غافل نه یو ،مونږه زهر او شات ښه پیژنو
په خنداګانو دا خواږه دردونه نه بدلوو
کیدای شي وخت د چا په لاس راته سزاوې راکړي
خو په سروزرو نظرېې فکرونه نه بدلوو
زړونه له زړونو بدلوو خو په سپیڅلو ورونو
خو حقیقت کې له مداره زړونه نه بدلوو
نور به هم وزوریږو نور به هم حالات بدل شي
خو دا جنګي او جهادي خویونه نه بدلوو
مونږه د رب په مرسته هر وخت بدلوو وختونه
خو د وختونو سره خپل ځانونه نه بدلوو
په غفلت نه ـ مونږ په غیرت او سادګی مئین یو
په ټول جهان دا نازولي غرونه نه بدلوو
سره او سپین پیژنو خو سپیني اوښکې هم پیژنو
په تشو کانو قیمتي لالونه نه بدلوو
مفتونه! موږ په ابدي مست ژوندانه مئین یو
په دې نیمګړي ژوند، ژوندي مرګونه نه بدلوو

## اسیر ده غلیم

### حنیفه «زاهد» شاه جویي

د شازلمو په مینځ کې ګیر ده غلیم
اخته په غم ،اخته په ویر ده غلیم
نور به یې خلاصه شي نړۍ له شره
دلته تړلی په ځنځیر ده غلیم
خوشي يې ګرځېده سودا په سر کې
ښه رامعلوم شو، بې تدبیر ده غلیم
دلته چې راشي روغ وتلی نشي
ټولې دنیا ته یو نظیر ده غلیم
د زمرو مخ ته ټینګیدلی نشي
پر ګیدړانو که امیر ده غلیم
لامو په برخه لوی بری شه ورونو
د حق په دام کې مو اسیر ده غلیم
ایوبي بړغ پر صلیبیانو وشو
لړزه لړزه په هر تکبیر ده غلیم
زاهده! خلکو زورور یاد وي
موږ ته چې ورسید ،حقیر ده غلیم

## زما شمله اوستاشين خال

### مشفق حريتمل

که دا نیمچه مسلمانان په همدې حال پاتې شي
نو اندیښنه ده چې دوستان به د دجال پاتې شي
دخپل دښمن په ملګرتیا کې دومره وشرمیږي
چې ترې د پلار نیکه د ننګ توره او ډال پاتې شي
چې اسلامیت او صلیبیت کړي سره ورونه ورونه
دپاپ په عشق کې ترې سجدې د ذوالجلال پاتې شي
که مونږه وژنې یرغلګر او مونږ یې ونه وژنو
نه به زما شمله او نه به ستا شين خال پاتې شي
راځه شم زه به اکبر خان ته دمیوند ملاله
چې انګریزان راته یو ځلې بیا ملال پاتې شي
ته دناقوس کړنګا ته سرخوزوه پرې یې نږدې
زما په غوږ کې دې ښایسته غږ دبلال پاتې شي
دحق باطل په معرکه کې هرڅوک ښه مالوم شي
څوک اسلام تښتني شي او څوک بیا اسلامپال پاتې شي
تاریخ په خپله حافظه کې ثبتوي کارنامې
څوک شاه شجاع شي دچا نوم ورکې ابدال پاتې شي
دوی دې مشفقه په سندرو عزازیل خوشال کړي
له مونږ سره دې تل ویارمن حماسي خیال پاتې شي

## دتکبیرچیغه

### م سید اکبر رستاد

تالنده برېښنا شمه سیلاب شم ټول جهان ورمه
چیغه دتکبیر چې په منبر شمه شیطان ورمه

عشق شمه جانان شم لیونی شم په جذبو شمه
تیرشمه له سره فدایي شم صلیبیان ورمه
نرشمه طالب شم زړور شم مجاهد شمه
توري ته چې لاس کړم له غلیمه بیا میدان ورمه
ورک شمه پیدا شمه اسیرشمه زخمي شمه
هوډ او په کلک عزم چې شهید شم کابل جان ورمه
شاعر شمه لیکوال شمه خوار عاجز رستاد شمه
رنګ شم مشوانۍ شمه قلم شمه داستان ورمه

### مدثرهمراز

فضا به مو رنګینه شي په باز د ازادۍ
بندي شاهین به وکاندي پرواز د ازادۍ
زخمي زړه ته ټکور ده او دوا د زخمي زړونو
خبر د ازادۍ دی که اواز د ازادۍ
غافله مسلمانه ته له عشقه څه خبر یې
خبر نه یې نادانه له اعزاز د ازادۍ
موزیک د شیطانانو ځنځیرونه دي ښه نه دي
تکبیر تکبیر دی زمونږ ساز د ازادۍ
دا ځان چې د حریت په نسبت ولمانځې غلامه
همدا نه حقیقت دی نه مجاز د ازادۍ
څه معاف شوې، توبه اوباسه دښمنه د حریت
عاجزه مسلمان یم ورمه ناز د ازادۍ
د غرونو زمرو تاسو ته دې ډیر ډیر مبارک وي
تبریک وایي مظلومو ته همراز د ازادۍ

په تېر پسې...

# (اسلامي روح)

# د حکمرانۍ بنسټ

مولوي محمدیونس خالص رحمه الله

دې کښې هم کوم عقلمن من انسان شک نلري چه د حکمرانۍ او قدرت وجود تر ژوند پورې اړه لري، بلکې لا پخپله ژوند د قدرت بنسټ دی، او هر ژوندی چه د ژوندانه په اعتبار نورو ته مخکښې وي هغه به ارومرو په نورو باندې خپل حکومت قائم ساتي، همدا وجه ده هغه ژوند چه انسان او نور حیوانات پکښې مساوي ښکاري په ځېنو مادي موادو تقویه کېږي او دغه ژوی (انسان) چه نسبت نورو حیواناتو ته په دغه شانې مادي موادو کښې زیات لاس لري، طبیعتاً په نورو باندې حکومت هم کوي دغه انسان چه د فکر او عقل څښتن دی او مادي تدبېرونه لري ځکه په لویو ځناورو... قوي حیواناتو برلاس دی چه ددې مادي ژوند وسائل په ښه توګه لاس ته راوړی شي، او د حوادثو په مخنیوي کښې تر نورو د مخه دی، همدغه راز پخپله په انسانانو کښې نن سبا هغه خلک په نورو حکومت کوي کومو چه ددې موجوده عصر دښو مادي وسائلو واګي په لاس کښې نېولي او د خپلې استفادې لپاره یې دهر ډول زیار څخه مخ ندی اړولی مسلمانان یا د اسلام مدعیان په عامه توګه ځکه نن صبا محکوم او پرېوتې دي، چې دوی نه خو هغه روح په ځان کښې تقویه کړې کوم چه په جهان باندې یواځې نه بلکه د جنت په حورو او غلمانو باندې هم د حکومت لویه وسیله

ده او نه یې په مادي وسائلو د نورو په څېر ځان مجهز کړی دی، تنې مسلمانان د عمل په ډګر کښې د یو کلک تردد سره مخامخ شویدي، نه یې د حیواني روح د تقویې لپاره ملا تړلې ده، ځکه چه په لوی خدای(ج) باندې عقیده یې دیته نه پرېږدي او نه یې انساني روح او الهي بندګۍ ته داسې مخه کړې ده چه بې دالهي مرستې څخه بل هیڅ کوم څیز ته تکیه ونه کړي او مادي شیان هم یواځې دخدای(ج) د حکم د تعمیل په غرض لاس ته راوړي، دوی یعنې مونږ مسلمانان په مادیاتو کښې د زاړه تیوکرو ریو او په تقوی او بندګۍ کښې بربنډ ولاړ یو او د جهان مضحکه ګرځېدلي یو، دې دپاره چه مسلمانان د موجوده حالت څخه بدلون پیدا کړي اتفاقي فکر همدا دی چه دوی خپله وضعه او موجوده طرزالعمل تبدیل کړي، خود نظر اختلاف په دې کښې دی چه څرنګه تبدیل؟؟

لومړی فکر: هغه خلک چه د نړۍ لرو بر مادي قدرتونو یې فکرونه د تاثیر لاندې راوستي دا فکر کوي چه دمسلمانانو د تنزل علت دادی چه دوی په مادي چارو او سیاسي چلند کې هم اسلام ته مداخله ورکړي او داسلامي احکامو په سیوري کښې یې سیاسي او اقتصادي خواوې کمزورې شوي او نشي کولای چه د

نورو قدرتونو سره اوږه په اوږه مخکښې لاړ شي ـ ددوی په خیال د مسلمانانو د ترقۍ لپاره اساسي چاره داده چه دین ته په اجتماعي چارو کښې مداخله له منځه یوسي، او خپلې اقتصادي او سیاسي چارې بې د کوم حزبي تفاوت څخه دلرواو برو نا مسلمانو قدرتونو په اصولو رواني کړي، ددې فکر څښتنان دغه عمل ته حقیقي اسلام وايي او دا د خدای(ج) حقیقي بندګي ګڼي، ددوی په نظر کښې تول ژوند د اسلام په اصولو چلول یو خیالي او مختلق اسلامیت دی او پیروانو ته یې افراطي مسلمانان وايي، دغه شانې خلک دخپلې ادعا لپاره دادلیل راوړي: کله چه ځینې اسلامي ممالکو نورو رژیمونو ته ورمخه کړې وینو او ګورو چه په صنعت، حرفه او تخنیکي چارو کښې یوه اندازه پرمختللي او کومو چه تر او سه ددوی په اصطلاح د ارتجاع لمن نېولې یو قدم وړاندې نه دي تللي او نه به لاړ شي.

دوهم فکر: یوه ډله خلک فکر کوي چه د ترقۍ او لوړتیا بنسټ خو یقیناً اقتصادي پر مختګ دی، مګرم مسلمانان ځکه نن بېرته پاتې دي چه دوی د اسلامي اقتصاد لمن پرېښې ده، د دوی په خیال که مسلمانان نن خپلې چارې په اسلامي اقتصاد تنظیمې کړي ژر په ژره به دلرو برونه هم مخکښې شي او دنورو نړیوالو لپاره به درهبرانو حیثیت پیدا کړي، دوی د همدې نظر د اثر لاندې په دې برخه کښې لوی لوی کتابونه لېکلي او دفکر او شرعي دلائلو له لارې یې خپله نظریه په خپل خیال ثبوت ته رسولې، حال دا چه نه خو مادي مفکرینو ته د دوی دلائلو قناعت ورکړی چه په خپلو اقتصادي رژیمونو کښې یې ورڅخه استفاده کړې وای، او نه خو د اسلام تاریخي شواهد دغه نظریه تائیدوي، ځکه درسول کریم صلی الله علیه وسلم او صحابهٔ رضی الله عنهم زمانه د اسلام په تاریخ کښې د اسلامي احکامو دتعمیل په برخه کې ساری نه لري، خو سره له دې هم کله چه امهات المؤمنین د څه دنیوي سامان خواهش وکړي، داسې ځواب ورنکړی شو چه د اسلام په اقتصادي نظام کښې به دفارس او روم څخه هم دمسلمانانو اقتصاد لوړ لاړ شي او دغه ارزوګانې به مو سرته ورسېږي، بلکه دداسې ځواب حکم راغې.

**"یاایها النبی قل لا زواجک ان کنتن تردن الحیوة الدنیا "...** یعنې اې پیغمبره! خپلو ښځو ته ووایه که تاسو دنیوي ژوند او د دنیوي ژوند ساز او سامان، ښکلا او سینګار غواړئ نو راشئ چه په شرعي توګه مو (د طلاق په وسیله) رخصتې کړم، او که خدای او رسول او دآخرت کور غواړئ، نو الله تعالی ستاسو نېکو کارو ته لوی اجر تیار کړی دی.

ددې څخه بر سېره پخپله د هغه وخت د مسلمانانو اقتصادي حالت مونږ په دې متیقن کوي چه اسلامي اقتصاد د اقتصاد دلوړتیا په فلسفې نه، بلکې د اسلامي نورو احکامو په څېر لوی خدای(ج) ته دعبودیت په فلسفې راغلی دی. که څه هم ددې فکر طرفداران د خپل نظر څخه دد فاع او دهغه د تائید لپاره منطقي دلائل منځ ته راولي او په دې لاره کښې لاس او پښې وهي خوبې د یو خیالي منطق او غیر معمولي نظر څخه کومې نتیجې ته نه دي رسیدلي او نه یې د رسیدلو اټکل کولی شو.

دریم فکر: یوه ډله فکر کوي چه ترقي او لوړتیا د اقتصادي پرمختګ او صنعتي چارو تنظیم نه، بلکه په نورو باندې د حکمرانۍ یا په صحیح عبارت نورو ته درهبرۍ او مقتدائیت څخه عبارت دي، دوی وايي هغه طفل چه د بې وزلۍ له امله د خان دغو او خدمت کوي اوهم د څارويو ځایونه ورسمبالوي له دې کبله چه د څارويو غړوندي دده په لاس کښې دی نسبت مستریح اوآرام څارويو ته مترقي بللی شو، او هېڅوک هم دا فکر نشي کولای چه هغه طفل به د څارويو د موقف ارمانجن وي، راغلو دې ته چه ایا ددې رهبرۍ او حقیقي لوړتیا عامل به نو څه وي، هغه نو لکه څنګه چه مو لومړي وویل د ژوندانه په ډګر کښې وړاندې توب یې لوي عامل بللی شي ـ نن سبا که لرو او برو د ترقۍ واګې په لاس کښې

نیولي یقین دی چه د اقتصاد پرمختیاله برکته دي، خو ددې معنا دا نه ده چه د رهبرۍ او حکمرانۍ راز په همدې اقتصاد کښې پروت دی، او اسلامي ټولنه ترهغې پورې ترقي نشي کولی تر څو یې د اول نظر سره سم خپل مسیر نه وي بدل کړي، دوی د خپلې ادعا لپاره د ثبوت دلیل داسې وړاندې کوي.

الف:- مونږ وینو چه په هره انساني اجتماع کښې داسې شتمن په تن روغ، منصب ته رسیدلي انسانان شته چه یو پوه او دعلم څخه ډک بې شتو، بې منصبه، ضعیف انسان ته د احترام لاسونه په سینه ودریږي، که درهبرۍ راز تر روحي لوړ پروازه پورې اړه نه درلودلی، دغه شانې مناظر بــه نــا معقــول، بلکــه لــه منځــه بــه تللــي وای.

ب:- د تاریخ پاڼې واړوئ او وګورئ دکوم وخت نه چه دمادي زور څښتنانو دروحي رهبرانو په مقابل کښې قیام کړی بلاخره دراتلونکي نسل رهبري چه د ترقۍ سره ترادف لري د چاپه برخه شوې. همدا اوس هم آیا دافکرد مادیونو په نظر کښې ندی ناست؟ که نن یوه داسې اقتصادي نظریه قائمه شي چه نسبت پرون ته مؤثره وي پرونیو رهبرانو ته سمدلاسې ځواب ورکوي او درهبرۍ غړوندي یې له غاړې ارتوي، حال داچه له یوې خوا د تاریخي شواهدوله مخې د تل لپاره بشر ته درهبرۍ جنډه دهغه لاس ته ورغلې چې دعالي انساني روح څښتن دی، او اوس هم په شعوري او لاشعوري توګه ډېر شتمن دهمدغه شانې رهبرانو په مخکښې سر ښکته ولاړ دي، او له بلې خوا په ښه توګه د اسلام لومړنۍ پېړۍ دنیا ته وښودله چه فتحه او نصرت عزت او ترقي د اسلحو تر ډېرښت، د پیسو دولت ترتکثره او دمېدونو تر زیاتوالي پورې اړه نلري، بلکه تر یوه داسې ژونده پورې ارتباط لري چه نسبت عام ژوند ته داسې وي لکه دانسان ژوند چه نسبت نورو حیواناتو ته دی، ددې ژوند اصول د لوی خدای(ج) سره کلکه رابطه، او دعامه بشریت سره د خیرخواهۍ احساس، او د الهي عبادت او تقوی څخه په غیر(نسب، ژبه، رنګ او شتمني) د فضلیت معیار نه منل ګڼل کېږي.

ددې خلکو په خیال تر څو چې مسلمانان د تقوی په جامو پټ نشي د نړۍ پر مخ به رسوا او سپک ژوند تیروي، دوی وایي د مخلوق څخه خالق ته توجه ګرځول د ترقۍ او حکمرانۍ اساس دی، دوی عقیده لري که یوه ډله مسلمانان حقیقتاً د لوی خدای (ج) سره په هغه بیعه وفا وکړي چې الله تعالی پخپل قران کې په ((ان الله اشتری من المؤمنین..... )) آیت سره بیان کړې د پخوا په څیر به بیا هم د نړۍ هر ګوټ ته د اسلام پلوشې ورسوي او جهاني رهبري به چې نن سبا ورته خلک حکمراني وایي ورپه برخه شي.

ددې کرښو د لیکونکي په عقیده دغه دریمه نظریه ځکه پر ځای او د تائید او منلو وړ ده چې له یوې خوا الله تعالی وعده ورکوي: ((ان تنصروا الله ینصرکم )) یعنې که تاسې د خدای د دین مرسته وکړئ ( الهي پوره تمثیل کړئ ) الله تعالی به ستاسې مرسته وکړي. او له بلې خوا اخطار ورکوي:

**"ان ینصرکم الله فلا غالب لکم وان یخذلکم فمن ذالذي ینصرکم من بعده"**. یعنې که الله (ج) ستاسې مرسته وکړي نو په تاسو بر لاس څوک نشته او که الله مو نسکور او ذلیله کړي نو بیا داسې څوک نشته چې ستاسو مرسته وکړي او رااوچت مو کړي.

ددې آیتونو په رڼا کې یو پوه او حق لټوونکی انسان دې ته رسي چې اسلامي روح ریښتیا چې د ترقۍ او لوړتیا، رهبرۍ او مقتدائیت بنسټ دی او دا هغه ژوند دی چې بالوسیله یې مسلمانان په غیر اسلامي ډلو او ټپلو حکومت کولی شي.

# ولې ژورناليستان بې طرفه نه دي؟

لمر شرفزی- کابل

په اوسني وخت کې د جګړې ستر اړخونه نظامي، اقتصادي او تبليغاتي اړخونه دي. امريکا له نظامي يرغل سره غبرګ په سيمه پراخ تبليغاتي يرغل هم وکړ او د سيمې د ګوتو په شمېر رسنۍ يې په خپله غېږ کې ونيوې. لسګونه تلويزيوني، لسګونه اژانسونه، سلګونه راډيويي، سلګونه چاپي او سلګونه انټرنيټي رسنۍ يې په خپل تمويل وزېږولې او ددې ټولو د چلولو لپاره يې زرګونه ژورناليستان هم تمويل او وپېرل.

په بله اصطلاح ويلی شو چې رسنۍ د يرغل له لومړي سره زموږ د دښمن چوپړ (خدمت) ته ولوېدې او دښمن هم په پراخ ډول پرې خپل چوپړ وکړ.

په نوره نړۍ کې رسنۍ د ولسونو د غږ راپورته کولو، د حقيقت راڅرګندولو، د تېريو د په ګوته کولو او د خپلې ټولنې د سمون او پرمختګ په موخه فعالې دي، خو زموږ په هېواد کې رسنۍ ددې ټولو برعکس کړنې ترسره کوي او د ژورنالېزم او ژورنالېست مسلک ته سپکاوی کوي، ولې د امريکا له يرغل سره سم رسنيز ډګر تود شو؟ د يونان زېږولې او لويديځ پاللې ديموکراسۍ په بنسټيزو اصلونو کې د بيان ازادي يو بنسټيز اصل دی. لويديځ تل د ديموکراسۍ له دې اصل څخه پر اسلامي هېوادونو او جهادي غورځنګونو په بېلابېلو اړخونو کې د فشار راوړلو او د دوی په اړه د عامه اذهانو د پر ضد کولو په توګه کار اخيستی.

د امريکا له يرغل سره سم د همدې موخې د ترلاسه کولو لپاره امريکا په هېواد کې په خپل تمويل زرګونه بېلابېلې رسنۍ وزېږولې، ترڅو د تبليغاتي جګړې په توګه ټولې تمويل کړې رسنۍ پر اسلامي امارت سربېره د سيمې په نورو جهادي غورځنګونو د فشار په وارډولو متمرکزې کړي او عامه اذهان د دوی پر ضد واړوي. دا چې تمويل شوې رسنۍ د بهرنيانو لخوا تمويلېږي، نو ځکه د بهرنيانو په ټولو پټو او ښکاره تېريو سترګې پټوي او برعکس د بهرنيانو هر تېری ته له لومړي سره دعدل او انصاف نوم ورکوي. په همدې رسنيو کې له لويديځه راوستل شوې د پرديو مفکوره لرونکي سلګونه څېرې د مبصرينو او مسؤلينو په توګه مطرح کړای شوې او هغوی په پراخو هڅو د اسلامي اصولو، احکامو او شعايرو پر وړاندې د لويديځ له امر سره سم د منفي فکر په خپرولو لاس پورې کړ. نن نوي ځوانان چې د ژورنالېزم په ډګر کې پښه ږدي، نو دوی په شعوري او غير شعوري توګه د همدې بهرنيو را ډالۍ کړيو مبصرينو او کارپوهانو پر پل پل ږدي او د لويديځ په چوپړ کې پرېوزي.

د امريکا له يرغل سره سم د رسنيز ډګر د تودېدو ستر لامل دا هم دی، چې د امريکا د تمويل کوونکو رسنيو د ژورناليستانو معاشونه يې دومره لوړ وټاکل، چې هر پوره او نيمه ژورنالېست يې په خپله غېږه کې ونيو او کومو رسنيو چې د خپلواکه خپرونو په هوډ خپرونې پيل کړې، نو په دام کې د هغوی د راګير کولو لپاره يې داسې سوداګريز او تجارتي اعلانونه چمتو کړل، چې د اعلانونو د خپرولو د لوړې بيې پر وړاندې د خپلواکو رسنيو هوډ تر پښو لاندې شو او د لويديځ د تبليغاتي ماشين برخه وګرځېدې.

نورې نوې زېږېدونکې رسنۍ د پیسو د لاس ته راوړلو او د خپلو کارکوونکو د معاش پوره کولو لپاره د مخکنیو پر تقلید روانې دي، ځکه نو د لویدیځ د چوپړ په کولو کې دوی خپل ژوندویني او د پیسو د حصول لپاره هره ورځ د یوې نوې رسنۍ ډېره ږدي.
د بهرنیانو لـه ګـډ یرغـل سره سم پـه سیمه کـې د دیموکراسۍ د غوښتنو پر وړاندې هر خنډ د بهرنیانو د ټوپک د شپېلۍ ننبه وګرځېد او هر اوچتېدونکی غږ خپ کړای شو. پرځای یې په ډالرو د اخستل شویو افغانانو پر ژبه د بهرنیانو غږ پورته شو. د سیمې مطرح وګړي یا په ډالرو وپېرل شول او یا ووژل شول.
همدا ګوابن خپلواکو ژورنالیستانو ته هم متوجه شو چې ځینو یې خپل ضمیر وپلوره او ځینې د مرګ او زندان له وېرې چوپ شول، نو ځکه د ژورنالېزم ډګر لویدیځ مېشتو او لویدیځ پالو ژورنالېستانو ته پاتې شو. هغوی د لویدیځ د مدافع وکیل په څېر د لویدیځ په غوښتنه د زهرجنو تبلیغاتو خوله د سپېڅلو مجاهدینو د سپېڅلو کړنو پر منفي تعبیرولو پسې خلاصه کړه او د بهرنیانو یا د کرزي د ادارې هر تېرې او ناوړه چلند یې مثبت تعبیر کړ. د ژورنالیستانو لخوا لـه بهرنیانو او د کرزي له ادارې د دفاع د کولو بل لامل دا هم دی، چې د دوی د رسنیو مالي سرچینه بهرنیان دي، نو د پیسو د لاس ته راوړلو لپاره ژورنالیستان کوښښ کوي، چې په خپلو رسنیو کې ترې دفاع وکړي. بل لامل دا هم دی چې د رسنیو په سرونو کې کمونیستي او اروپایي مفکوره لرونکو وګړو ځای نیولی او هغوی د لویدیځ او د کرزي د ادارې په شتون کې خپل شتون ویني، نو ځکه یو طرفه قضاوت کوي او د ځان د بقا لپاره د بهرنیانو او کرزي د ادارې د مدافع وکیل په څېر رول ترسره کوي د رسنیو دا ډول کړنې په سیستماتیکه توګه ترسره کېږي او تل په سیستماتیکه توګه د مجاهدینو پر وړاندې او د هغوی د سپېڅلو کړنو په اړه منفي تبلیغات ترسره کوي. که داسې نه وي، نو په دوه طرفه جګړه کې تل د ملکیانو د وژنې پړه ولې پر مجاهدینو اچول کېږي؟ ولې د مجاهدینو د جهادي کړنو خبرونه لـه رسنیو نه خپرېږي او باالعکس د مقابل لوري د دوه متره پولچک د جوړونې یا د لس متره سرک د قیر کولو خبر په پوره شور خپرېږي؟ ولې د بهرنیانو لخوا د سلګونو ملکیانو پـر شـهادت سترګې پټېږي او د بهرنیو یـا کورنیو عسکرو لخوا د وژل شوي عبدالصمد روحاني د وژل شوي احمد امید او سردار احمد پړه په ډېره سپین سترګۍ پر مجاهدینو اچول کېږي؟ لـه بهرنیانو سره په روانه دیارلس کلنه مبارزه کې د ژورنالېستانو یو طرفه قضاوت اوس د ټولو سر په دې خلاص کړی، چې په هېواد کې ژورنالېستانو خپل حیثیت د پردیو د ګېټو لپاره تر پښو لاندې کړی او د ژورنالېزم په نوم د لویدیځ د پوچو تبلیغاتو خولې د حقیقت د پټولو په موخه غړېږي.
له اسلامي امورو ناخبري هم د ژورنالېستانو د یو طرفه قضاوت ستر لامل دی، ځکه کـه چېرې یو څوک لـه اسلامي امورو خبر وي، نو هیڅکله دا جرئت نشي کولای، چې د اسلامي شعایرو پر وړاندې ودرېږي او یا پر حقیقت سترګې پټې کړي دا چې وایو ژورنالېستان حقیقت پټوي او پر ژبو یې د تمویل کوونکو خبرې خپرېږي، ددې ادعا د اثبات لپاره د روان کال د وری د شپاړسمې د ټولټاکنو په ورځ د مجاهدینو د بریدونو د خبرونو نه خپرول، د رای ورکونې د تشو مراکزو په ډکو مراکزو تعبیرول او د عبدالصمد روحاني، احمد امید او سردار احمد د وژنې پړه پر مجاهدینو وراچول، هغه څه دي چې په اړه یې د ډېر لږ شعور لرونکي هم پوهېږي، چې اصل حقیقت څه دی او ژورنالیستانو ولې او څه ډول برعکس ښودلی.

# اوضاع جهادی ولسوالی وردوج ولایت بدخشان

دانشی وقاد

وردوج سرزمین سرسبزوشاداب ودارای کوه های سربفلک وجنگلات گونا گون ودریا وآبهای شیرین وصفامیباشد" دره وردوج به طورمستطیل ازولسوالی بهارک آغازوبه ولسوالی زیباک خاتمه می یابد که شرق آن پیوست است به ولسوالی زیباک؛غرباًامتداد دارد به ولسوالی بهارک ؛شمال آن کوه های طولانی مملواز اشجاروبوته های مثمروغیرمثمرحد فاصلی است بین ولسوالی وردوج وولسوالی شهدا ؛جنوب این ولسوالی باکوه های طویل که درواقع دیواری است بین وردوج وولسوالی جرم امتداد آن درحدود پنجاه کیلومتربوده؛ ودارای{54} قریه است نفوس آن از(20)تا(25)هزاراست ؛مدرسه دینی آن 5باب؛مکاتب آن13باب لیسه متوسطه وابتدایه است؛وتعدادعلماءآن(400)تن میباشد ؛مردم این سرزمین اکثرأزراعت پیشه ومالدار است؛ویژه گی خاص وردوج عبورشاهراه عمومی ابریشم وراه مواصلاتی ولسوالی های زیباک ؛اشکاشم؛ واخان؛شغنان؛سرحدپاکستان؛چین؛وتاجکستان،میبا شد .

مردم وردوج بسیار بادیانت، تقوی داره مجاهدصفت ومجاهد پروراست چنانچه تاریخ گواه است که درزمان تجاوزقشون سرخ،روسهای وحشی توانستند درظرف 3 روزبسیارنقاط مهم افغانستان را تصرف کنند اما هنگامیکه کاروان قشون سرخ متجاوز در دره وردوج میرسد ، درمنطقه امبه دزدان به مقاومت شدید مردم مجاهد این دیار روبرومیشوندواین مقاومت واستقامت تامدت 27روزطول میکشدودشمن تلفات سنگین رامتقبل شده تمام نیروهای خودرا بخرچ داده سرانجام این دره راباشهید نمودن(100)مجاهد تصرف میکند وبعدازتصرف این نقطه استراتیژیك دشمن میتواند ولسوالی های دیگررا بسهولت تصرف نماید ودرزمان حکومت مزدورکمونستی مردم این دیارمجاهدت وفدا کاری بی دریغ نمودند ،بعدازمهاجرت کوتاه مجاهدین دوباره به این دیار واپس میشوند ودرمدت کوتاه وکم تمام وردوج را فتح نموده وپوسته های مهم خلقیها رادرساحه،آواسه،ترنگ،یومل،باشند ،واسترپ، صوفیان، وتیرگران،تصرف کردند ، دشمن تلفات سنگین رامتحمل شده تاب وتوان مقاومت رادرسائر نقاط هم ازدست دادند ؛سرانجام بعد ازتجاوزقشون خونخوارامریکاومتحدین شان مردم این سرزمین آزادی خواه کمرهمت رامیبندند ودربرابراین تجاوز واشغال عملاًعازم میدان جهادونبرد میشوند که در ابتداءبه اثرتحرکات علماءدینی مجاهدین ازطریق ماین گزاری

درجاده های این ولسوالی دها تن اشغالگران را روانه جهنم ساختند"
درنتیجه زحمات مجاهدین بتاریخ/2011/میلادی یک گروپ بسرکرده گی ملاشمس الدین، (منصور) وقاری فصیح الدین،صائب،علناًدربرابردولت اجیرجبه گیری نموده ودرمنطقه باشند این ولسوالی میان پیروان حق وباطل درگیری صورت گرفت که منجربه زخمی شدن ملا منصوروشهید شدن ملاعبدالقهارگردید ، دشمن نیزچند نفرازعساکرمزدورخودرا ازدست داد و مجبوربه عقب نشینی شد وبتاریخ اوائل/2012/جنگ شدیددرمنطقه یخشیره میان مجاهدین امارت اسلامی وعساکرمزدورصورت گرفت، دراین نبرد 8عراده رینجربه آتش کشانده شد بیش از50عسکر مزدورکشته، زخمی واسیرگردید ودرطی یک بماردمان اشغالگران وحشی درمقام راغک یخشیره12تن مجاهدین بمقام عالی شهادت نائل گردیدند ودراخیر2012ملا شمس الدین،منصور،توسط طیاره بی سرنشین شهیدگردید ، ونیزدریک عملیات شب هنگام اشغالگران درقریه استرپ یک عالم دین بنام مولوی محمد امین شهیدگردید ؛ به تاریخ/2012/10/10: درولسوالی وردوج درپی کمین مجاهدین درنزدیک ساحه صوفیان برقطاررینجرهای دشمن یک عراده رینجربا4پولیس سرحدی ازبین رفت؛به تاریخ/2012/3/2:درنتجه کمین ویک حمله تاکتیکی مجاهدین غیور برقطاروسایط اردوی مزدور درمربوطات قریه غنیوولسوالی وردوج10عراده موتررینجردراول غنیمت سپس8عراده آنرابه آتش کشانیده شد و2دیگرراباخودبردند همینگونه15تن ازسربازان اردوی اجیرکشته12دیگراسیروشمار زیادی اسلحه ومهمات مختلف النوع بطورغنیمت بدست رادمردان قهرمان درآمد قابل تذکراست که این نبرد یک ضربه سنگین ودندان شکن برپیکرمزدوران ورمز موفقیت سرسپردگان راه حریت وآزادی درتاریخ کشور به ویژه درتاریخ زرّین وردوج محسوب می گردد ؛ به تاریخ/2013/3/8: دوحمله وسیع وگسترده تعرضی دشمن درمربوطات قریه یخشیره ولسوالی وردوج دراثر ضربات مؤثرمجاهدین به عقب رانده شد ،درنتجه شلیک هاوان مجاهدین برسنگردهشکه دشمن سنگربادهشکه همه نابودگردید ودراثرفیرهای ثقیله دشمن بعضی ازخانه های مسکونی مردم درقریه یخشیره خساره مندشدند ؛به تاریخ/2013/3/9:یک حمله وسیع دشمن نیزهمانند سابق به یاری پرودگاردریخشیربه عقب رانده شد باتأسف دراثرتوپ خانه وحملات ثقیله وحشیانه دشمن برقریه یخشیره ولسوالی وردوج درحدود10زن،کودک،ومرد شهید ومجروح گردیدند ؛به تاریخ/2013/3/14:درولسوالی وردوج درمربوطات قریه غنیو مدت دو2ساعت بادشمن نبرد شدیدی به وقوع پیوست، درنتجه تلفات سنگین به دشمن واردشد ومجبوربه عقب نشینی شدند ؛ ............. به تاریخ/2013/3/15/ درولسوالی وردوج،عساکراداره مزدورحدود300خانواده مظلوم ومتدین قریه یخشیره راجبراً وظلماًوبسیاربه کمال وحشت وقساوت قلب درفصل سرماوهوای یخ به جرم همکاری بامجاهدین اخراج نمودند ،این وحشت اجیران برمردم عامه ومسلمان نابخشودنی وازیاد نارفتنی هست به تاریخ/2013/3/17: درولسوالی وردوج طی یک نبرد طولانی که درپایین قریه زو

آغـــازگردیده بود ، دشمن زبون تحت محاصره وضربات کوبنده مجاهدین دلیرامارت اســـلامی قرارگرفتند درنتجـه ایـن نبرد تـاریخی20تـن ازعسـاکراجیرار دو وپـولیس کشته 10تـن دیگرشـدید زخمـی2عـراده رینجـر1عـــراده تـــانگ بطورکامـــل تخریـــب ودرحـدود30میـــل اسـلحه مختلـف النـوع غنیمـت گردید ، دراین نبرد خونین یک قومندان مجاهدین بنام امیـرالله بـادوتن دیگرشـهید گردیدنـد . انالله وانااليـه راجعـون ؛ بـه تـاریخ/2013/3/19: درولسـوالی وردوج مجاهـدین غیـورودلیراین سـرزمین حمـلات وسـیع وگسترده ای رابر7پوسته امنیتی عساکرمزدورواقع درمربوطات قریه غنیووآب جال آغـــازنمودند ، درنتجه همـه آن7 پوســـته بـــه نصـرت پروردگارعالمیـــان بطورکـــامل فـتح گردیـد ، دراین جریـان10رینجردشمن تخریب2عراده رینجرغنیمت سپس بـه آتش کشـــانده شد ، همچنـان دراین نبرد4عسکردشمن کشته2مجروح 12تـــن اســـیرگردیدند ، ونیز4پایـــه دهشـــکه وشمـــارزیادی اســلحه مختلـــف النـــوع غنیمـــت گردیـــد ؛باقی عســـاکرمزدورهمه فرارنمودند ؛بـــه تـاریخ/2013/3/21/مجاهـدین قهرمـــان درولســوالی وردوج یـــک عـــراده تانـــگ زری پـــوش دشـــمن رادرمربوطـات قریه مرکان تخریب وبه آتش کشـانیدنده بـه تـاریخ/2013/3/22/مجاهـدین قهرمـان ولسـوالی وردوج یکبـــار دیگـر هماننـدضـربات کوبنـده قبلـی ازدوناحیـه، قریـه شـیدآباد وآبجین، برعساکردشـمن حملات وسیـع را آغازنمودنـد وبه شکست فضیحانه دشمن خـــاتمه یـافت درنتجـه ایـن نبرد تـاریخی بیش از50 عسکراردووپولیـس مزدورکشته بیش از40تـن زخمـی ودرحـدود50میـل اسـلحه مختلـف النـوع وشـمارزیادی مهمـات غنیمـت مجاهـدین گردیده، بـه

تـاریخ/2013/3/24/مجاهـدین قهرمـــــان ولسـوالی وردوج یک حمله وسیع وگسترده دشمن رادرمربوطات قریـه صـوفیان بـه عقب زدنـد وطـی یـک حملـه هـاوان برتجمـــع عســـاکرکماند ودرمربوطـــات قریـــه خسـرو12کماندوکشته وشمـار دیگرزخم برداشتند ؛به تاریخ/2013/3/25/در وردوج بعدازنمازشام درپی یک حملـه مسـلحانه مجاهـدین برعســـاکر اجیرســرحدی درســاحه کرسنگ ولسـوالی متذکره15تـن ازمزدوران کشته ومجروح مقدار12میل اسلحه غنیمت گردید ، به تـــاریخ/2013/3/26/درنتیجـــه حمــلات مجاهـــدین بـــر2پوســـته دشـــمن درمربوطـــات قریـــه باشند6عسکردشمن کشته و5تـن دیگرزخمـی گردیدند در ایـن جریـان4تـن ازمجاهدین مجروح و2تـن بـه مقام بلند شهادت نائل گردیدند .

انالله وانااليه راجعون

★: ډېر واره زاړه قبرونـه د رالوشېدو پـه وخت مـوږ لیـدلي، چې دننـه پکـې پراتـه مـړي کـاملاً روغ رمـټ وي، دا د خـدای تعـالی قـول هـم دی چې (شهیدان ژونـدي دي) رحمان بابا هم وايي:

امانت به د لحد په منځ کې پروت وي
څوك چې اوسي امانت په دې دنیا

# طالب د اسلامي امت شريکه تکيه



ابو عمر

په هېواد دتېرې نړدې څوارلسم کال روان دی، پر اقتصادي او سيمه ايزو هدفونو سربېره د ښکېلاکګرو تر ټولو لومړی او لوړ هدف دغه و، چې په ګران هېواد کې د اسلام د مبين دين محکمې جرړې سستې ياهم له بېخه وباسي او د اسلامي امارت بې نمونې نظام ونړوي، د داخلي ګوډاګيانو په مټ يې امارت ونړاوه او له طالب سره د دښمنۍ تر سرليک لاندې يې په ټول هېواد کې د مدرسې نوم ورک کړ، ږېره جرم شوه او اوږده لمن د ترهګرۍ سمبول ياده شوه. خو لا ښکېلاکګرو د خپلو شومو هدفونو لپاره د تطبيق شرايط برابرول چې د ولس له منځه د تکبير غږونه پورته شول، تر سينو بمونه راتاوشول، د موټر بم په چاودونو کې غوښې واورېدې او دښمن دې بې مثاله قربانيو ته وازه خوله پاتې شو

په ټول هېواد کې د اسلامي امارت د باتجربه مشرانو په مشورو د ولس له منځه د هېواد دخپلواکۍ لپاره ځوانان دغوښوشيندلو ته تيارشول، دخويندو دعزت دساتلو لپاره يې خپل سرونه وشيندل او داسې بې شانه قربانۍ يې ورکړې، چې عاليقدر امير المؤمنين حفظه الله ته د نړۍ له ګوټ ګوټ نه لويو لويو مجاهدينو د بيعت لاسونه را اوږده کړل او د دې خاکساره خو باعزمه لوی انسان اطاعت يې د ځان وياړ وګاڼه.

د کفري متحد قوت له لوري د اسلامي نړۍ په بېلابېلو برخو کې د تاريخ ترټولو بد ظلمونه تکرارېږي، څوک يې ترخپله وسه دفاع کوي او څوک يې د ځان دخلاصون په تمه دغلامۍ لپاره سر ټيټوي، له يو ملګري سره مې د حج په مراسمو کې د برما کوم مسلمان سره سترې مه شې کړې وه، له پېژندګلوي وروسته ورته برمايي مسلمان ژړلي و او ورته ويلي و چې په افغانستان کې مې په طالبانو سلام وايه، ورته ووايه چې تاسې ته د ټولې نړۍ د مسلمانانو سترګې دي. طالب ته ځکه سترګې ور اوړي، چې د تاريخ ترټولو لويه قرباني پر مخ بيايي دا هر د عقل خاوند ته يو الهي نصرت ښکاري چې يو څوک په موټر سايکل راسپور دی او بل په ټانګ، د دواړو سره جنګ دی!مګر سترې، ستومانه، زخمي او نا اميده لاهم د ټانګ وال دی، طالب د نړۍ په مړو ملتونو کې سا پوه کړه او دا يې عملاً ور وښودل چې حق ورکول کېږي نه؛ اخيستل کېږي. په تېر څوارلس کلن جهاد کې دطالبانو پرلپسې زورور مقاومت، د دښمن له ډېربدو تندو تبليغاتو سره سره د دوی بې نمونې هماهنګي دوی د دې لايق کړل چې د نړۍ،

اسلامپال ولسونه یې خپله شریکه تمه وبولي، ربښتیا هم طالبان هغه څوک دي چې د ټولې اسلامي نړۍ لپاره قرباني ورکوي، ځکه چې که طالب څوکۍ غوښتلای نو په پیل کې به یې دامریکا و ناټو ټول شرایط منلي و، خو خپل حکومت به یې پرې نه خراباوه، مگر دوی ټولې کفري نړۍ ته سینه سپرکړه او دا ورته ثابتوي چې عزت د بندګانو له لوري نه؛ د الله ج له لوري ورکول کېږي.

د ټولې نړۍ اسلامي حرکتونو ته طالبان د بایللي اندلس دوروستیو سلګیو په وخت کې د غرناطې د بدر ډلګۍ ته ورته ښکاري، دوی اوس پوی شوي چې د عربي نړۍ په تېلو هغه څوک واکمن دي چې دامریکا په اشارو خوځېږي، ځکه خو اوس د اسلامي بریا او خپل عزت ساتلو لپاره طالب خپل وجود ګڼي او طالب هم داثابته کړې ده، چې نه به یې د زندانونو سوې کرېږي او نه به یې هم د په ټانګونو پسې تړل له خپل هدفه راوګرځوي، ځکه چې دوی د ټول اسلامي امت لپاره قرباني ورکوي، دوی هغه څوک دلته راګیرکړی چې که دوی د الله ج په مرسته دلته ورسره مقاومت نه وای کړی، نن به د برما غوندې مسلمانان په ټوله نړۍ کې ژوندي سوځول کېدل او امریکا به یې سوځونکي په شاټپول.

داچې په هېواد کې ځیني سکولران او مرتدین د طالب د بدنامۍ لپاره هڅې کوي، هغوی اصلاً د اسلام په حاکمیت کې تاوان ویني، هغوی پوهېږي چې که اسلام حاکم شي بیانو قرآن د خوار او بدای، د زورور او کمزوري توپیر نه کوي، په ټولو یو ډول خپله پرېکړه عملي کوي، نوکه طالب راشي، اسلام راځي او چې اسلام راشي، نو اسلام خو د غله لاس پرې کوي او په اوسني رژیم غل، زاني، شرابي، لوطي او د فسادهره نمونه سره راټول شوي دي، ځکه خو له طالبانو سره د ګوډاګیانو دښمني، غیر شعوري نه؛ بلکې شعوراً جاري ده.

مګر په اسلامي امت کې لاداسې سترې هستۍ پرېمانه دي چې هغوی تش په نامه جغرافیوي کرښې نشي سره بېلولای، ټول اسلامي امت سره یو جسد دی او د دې جسد شریکه تکیه سترې، ګرد وهلې، خو بې نمونې غیرتي طالب دی.

☆☆☆

★: هغوی چې د هوښیارانو په خبرو باندې عمل نه کوي، او غوږونه ورته ږدي، نو بدي او بدمرغي به یې په برخه وي.

★: د سرېتوب خپلې نښانې دي چې هغه یې په کړو وړو کې څرګندېږي، لکه مېړانه صبر حوصله او هوډ.

★: ځینې خلك په ربښتیا هم تکړه او هوښیار وي خو د خپل ځان ستاینه په خپله کړي، نو ټول ښه سرېتوب له لاسه ورکړي.

★: هوښیار هغه چې خپل همت لوړتیا او څوړتیا وپېژني.

★: په نړۍ کې د زور قدر کېږي غریب او کمزوري تل تر پښو لاندې کېږي، که ډېر ښه سړی هم شي خو چې بې ځواکه شي نو بیا خلك هره بده خبره درته کړي، خو که ځواکمن یې بیا درته بابا او غټ دادا وایي. (سعدي)

# په زړه پورې کیسه

مولوي عباس

حضرت خوله رضی الله عنها د حضرت ضرار ابن الازور رضی الله عنه خور ده، نوموړې یوه مجاهده او بهادره میرمن وه، د اسلام په تاریخ کې یې ځلانده کارنامې ترسره کړې دي، دلته یې تاسو درنو لوستونکو سره یوه لنډه خو په زړه پورې کیسه شریکوم ، په دې هیله چې د اسلامي امت هره مور او هره لور د اسې غیرتي کارنامې ترسره کړي.

یو ځل په دمشق کې د کفارو سره جنګ وشو او حضرت ضرار ابن الازور رضی الله عنه ژوندی ونیول شو ، په دې کار سره حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه سخت په قهر و او مسلمانانو ته یې پر هغه ځای، چیرته چې حضرت ضرار بن الازور بندي و د عمومي حملې امر ورکړ، پخپله حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه جنګي ترانې زمزمه کولې او مخ پر وړاندې روان و ، ناڅاپه یې یو مخ پټی اس سپور ولید چې په لاس کې یې پرکیدونکې توره او ښایسته نیزه وه، د دغه سپور تګ او چالاکي نه حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ته د هغه جنګي پوهه ښه څرګندیده، سپور د زغرې د پاسه تورې جامې اغوستې وې چې ټول بدن یې په کې پټ و ، په شین پټکي یې ملا تړلې وه او د نور پوځ نه وړاندې وړاندې ئې په چټکۍ سره حرکت کاوه، حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه وویل چې: کاش ما ته معلومه شي چې دغه په آس سپور تکړه ځوان څوک دی؟ په الله جل جلاله قسم دا ما ته ډیر بهادر او زړور معلومیږي، کله چې د مسلمانانو پوځ د کفارو پوځي پړاو ته ورننیږدې شو ؛ نو نورو مسلمانانو ولیدل چې په آس سپور تن به په کفارو داسې ورغوځه شو ، ته وایې باز دی چې په مرغیو یې هجوم وروړ، د دې سپور حملو د دښمن په لیکو کې یوه غوغا جوړه کړه او په څو شیبو کې د مړیو انبارونه ولګیدل، جنګ په پوره شور او زور سره روان وو، هر مجاهد خپله میړانه څرګندوله، خو دغه سپاره به بیا داسې حمله کوله چې دواړه خواوې به ورته هک پک پاتې شوې، د کفارو په لیکو کې به ورننوت او په خپله ورسره توره او نیزه به یې څلور پنځه کفار یو خوا بل خوا وغورزول، بېرته به د لښکر له منځه راووت او په پرلپسې ډول یې دغه عمل تکراراوه. کفارو او ډیرو ناخبره مسلمانانو فکر کاوه چې دغه زړور تن یواځې حضرت خالد بن ولید کیدای شي، رافع بن عمیره په حیرانتیا سره له حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه نه وپوښتل چې: دغه په آس سپور ځوان څوک دی؟حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ورته ځواب ورکړ: زه پخپله حیران یم چې دغه ځوان به څوک وي؟ په دغه وخت کې د

کفارو پـه لښکر بانـدې يـوه بلـه زوروره حملـه وشـوه، حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه د لښکر مخې تـه ولاړ و، ناڅاپـه يې پـه هغـه تـن سترګې ولګېدې چې د دواړو لښکرو توجه يې ځان تـه را اړولې وه، و يې ليدل چې د سپور آس ټول په خولو کې لوند خيشت دی، خو سپاره لا هم همت نه و بايللی، په يوازې ځان به يې د څو ـڅو تنو رومی عسکرو مقابله کوله، سپور دومره زړورتيا وښوده چې يواځې به د کفارو منځ ته ننوت، څو تنـه بـه يې مړه او ټپيان کړل، بيرته به داسې حالت کې راووت چې توره او نيزه به يې په يو وخت چلوله، يو څه وخت وروسته سپور د مسلمانانو لښکر تـه راواپس شو، مسلمانانو وليدل چې هغه سپور يو ځوان نه، بلکې هغـه د ګلاب د ګل يوه سره پاڼه وه، چې په وينو کې رنګ بنګ شوې وه، حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه ورته وفرمايل: تا خپله غصـه په کفارو سړه کړه او د الله جل جلالـه پـه لاره کې دې لوی جهاد وکړ، خو دومره راته ووايه چې ته څوک يې؟ ده هيڅ ځواب ورنکړ او بيا يې پـه کفـارو د حملې اراده وکړه، حضرت خالد بن وليد رضـی الله عنـه ورتـه وفرمايـل: اې د الله بنده!

ټول مسلمانان دې پـه نا ارامۍ او حيرانتيـا کې اچولي دي، ته دومره بې پروا ولې يې؟ ځان وښايه اخر تـه يې څوک؟د خالد بن وليد رضـی الله پـه اصرار باندې سپاره پـه ښځينه اواز سره ځواب ورکړ: ما د نافرمانۍ پـه سبب د ځواب ورکولو نه ډډه نه ده کړې، بلکې ماتـه شرم راځي، ځکه چې زه نارينه نه، بلکې يـوه زنانـه يم، زه د خپـل زړه درد دې ميدان تـه راوستې يم، حضرت خالـد بـن وليـد رضی الله عنه ترې پوښتنه وکړه چې ته څوک او د چا خور يـالور يې؟ نقاب پـوش ورتـه ځـواب ورکړ: زه د حضـرت ضـرار ابـن الازور خـور خولـه بنت الازور يـم، د ورور لـه نيول کيدو خبره شوم؛ نو دا مې وکړل چې تاسو وليـدل. حضـرت خالـد بـن وليـد رضـی الله عنـه چـې دا خبـرې واوريدې نو پـه ژړا شو او مسلمانانو تـه يې وويـل چې: د ضرار ابن الازور د راخلاصېدو بندوبست وکړئ، داسې حمله وکړئ چې په هر صورت وي، خو چې هغـه راخلاص شي په دې سره حضرت خوله رضي الله عنها وفرمايل چې زه به هم په دې حمله کې درسره يم، حضرت نافع رضـی الله عنه فرمايي چې: ما وليدل حضرت خوله رضـی الله عنهـا د حضرت خالد بن وليد رضـی الله عنه له څنګ نـه پـه کفـارو داسې سخته حمله وکړه، چې رومی کـافرانو پـه خپلـو منځونو کې وويل: کـه چيرتـه ټـول عـرب داسې زړور وي؛ نو بيا موږ تـه د عربو سره مقابله ناممکنه ده، پـه دې جنګ کې بيا حضرت ضرار ابن الازور رضـی الله عنـه روغ رمټ راخلاص شو.

((فتوح الشام))

★: ټولـه نـړۍ او پـه نـړۍ کـې هـر موجـود پـه شـواخون (شب خـون او تيـري) لګيـا دی پـه ټولـو کايناتو کـې جګـړه روانـه ده، خـو انسـان تـه پـه کـار دي، چـې خپـل انسـانيت وپېژنـي، ځکـه الله د ځمکـې خلافـت د چـا د مـرګ او شـر اچولـو لپـاره نـه دی ورکـړی، بلکـې انسـان يـې د خپـل عبـادت او د نـورو انسـانانو د خـدمت لپـاره مقـرر کـړی نـو اوس کـه لـه خپـل حد چې عبادت او خـدمت دی بـل لـوري تـه اوړي د سـزا وړ جوړېږي.

★: هره ورځ د پښتنو ډيوې مري او پښتانه د تيارې پـه لوري وړتېل وهل کېږي.

★: ډېـر واره ناپوهـان لـه جنجالـه ځانونـه خلاصـوي، خـو نـورهم پکـې لـوېږي، او بنـدېږي لکـه ليـونی اشعب چې پـه نفحـت العـرب کتـاب کې يې کيسه شوې ده.

بسم الله الرحمن الرحيم

# دام المؤمنين ام الحکم زينب بنت جحش رضی الله عنها

# حالات

ابوحمزه قاسم بن محمدالافغاني

**الحمدلله والصلاة والسلام على رسول الله امابعد:**
دزينب بنت جحش رضی الله عنهاپه حالاتوکې مختلف بحثونه دي :

اول : دهغې نسب :
نسب يې په لاندې ډول دی :
ام المؤمنين زينب بنت جحش بن رئاب بن يعمر بن صبرة بن مرة بن کبير بن غنم بن دودان بن أسد بن خزيمة الاسدية.
ام المؤمنين زينب رضی الله عنهادپلارنوم جحش دی اودمورنوم يې :اميمة بنت عبد المطلب دی چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم عمة ده ،موراوپلاريې دواړه داسلام څخه مخکې تيرشوي دي يعني اسلام يې نه دی راوړی اودبني اسد قبيلي اودمهاجراتوڅخه ده يعنې دمکې مکرمې نه يې مدينې ته هجرت کړی دی .

فائدة : په عربوکې دبني اسدپه نوم ګڼې قبيلې دي ،په قريشوکې هم بني اسدشته کومه چې دخديجة الکبری او دعبدالله بن الزبير رضي الله عنه قبيله ده ،هغه هم بني اسددي ليکن هغه دقريشو يوخيل دی اوهرچې زينب بنت جحش رضی الله عنها دکومې قبيلې څخه ده، نوهغه دقريشو څخه بيرون قبيله ده چې هغې ته بني اسدبني خزيمة وايي اودوی دبني عبدشمس چې دقريشويوخيل دی دهغوي حليفان دي يعنی دهغوی سره يې حلف (لاس نيوکه ،تعهد) کړی وو.

ورونه يې :
د سيرت په کتابونوکې يې درې ورونه ذکرکړي دي چې هغه په لاندی ډول دي :
١- عبيدالله بن جحش چې دجاهليت دزمانې څخه يې دحق تفتيش او تلاش کولوکله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دنبوت دعوی وکړه، نواسلام يې راوړاودخپلې ښځې سره يې چې ام حبيبة بنت ابي سفيان رضي الله عنها نوميدله حبشې ته هجرت وکړبياهلته بيرته داسلام څخه واوښته اومرتدشونصرانيت يې قبول کړواوپه نصرانيت کې مړ شو ،او اُم حبيبة رضی الله عنهاپه خپل اسلام کلکه شوه بياوروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم په نکاح واخيستله .
٢- عبدالله بن جحش رضی الله عنه چې ده هم په مکة مکرمة کې - مخکې له دې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دارالارقم بن ابی الارقم ته داخل شي - اسلام

راوړي اوبيايې هجرت کړی دی اوپه مدينه منوره کې اولنی. جنده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دجهادلپاره ترلې وه هغه يې عبد الله بن جحش ته ترلې وه چې بيا په هغې کې غنيمت هم نيول شوی وواوهغه يې په پنځه حصې کړو وړاندې ترديې چې دخمس حکم نازل شي اوپه دغه غزوه کې صحابه کرامودې ته داميرالمؤمنين لقب ورکړی وواوبيا په غزوه احد کې شهيدشوچې دغزوه احدنه يې مخکې ده او سعدبن ابي وقاص دعاء کړی وه چې عبد الله په کې ځانته دشهادت دعاغوښتې وه اوکافرانو يې شکل مثله کړی وواورسول الله صلى الله عليه وسلم بيادحمزة رضي الله عنه سره - چې دايې ماماکيدلو - يوځای په يوقبرکې خښ کړ.

۳- ابواحمدالضريرالشاعرو چې داهم صحابي واوپه سترګو ړوندوو، ددی سره شاعر هم وواو د زينب رضی الله عنهاځخه يوځوورځې وروسته وفات شو.

۴- يوه خوريې مشهوره ده چې هغه حمنة بنت جحش ده اودعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه ښځه ده اوهغه زنانه ده چې په عائشة رضی الله عنهابانـدې کوموکسانوتهمت لګولی وونويوه په کې دغه زنانه وه اودخپلې خور په خاطريې داکارکړی وونوبيارسول الله صلى الله عليه وسلم چې کله حدجاري کولونودائي هم (۸۰) دورې ووهله.

دهغې فضائل :

دزينب بنت جحش رضی الله عنهاډيرفضائل دي يو دهغه فضائلو ځخه يې داده چې درسول الله صلى الله عليه وسلم بي بي اوام المؤمنين ده اودرسول الله صلى الله عليه وسلم دعمة لور ده.

همدارنګه دي به چې کله د خپلو ښو سره بحث کولو اوخپل فضائل به يې بيانول نوويل به يې:

تاسوخپلوخاندانورسول الله صلى الله عليه وسلم ته په نکاح ورکړې ياستی اوزه الله جل جلاله خپل پيغمبر ته په نکاح ورکړی يم اودنکاح سفير يې جبرايل عليه السلام وو.

اودوي درسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه پوښتنه وکړه چې ستانه وروسته به تاپسی زرځوک وفات کيږي نوهغه ورته وويل: چې دچالاس اوږدوي عائشة رضي الله عنهافرمايي:

مونږظاهري لاسونه اندازه کول نوپه ټولوکې دسودة بنت زمعة رضي الله عنهالاس اوږدولیکن درسول الله صلى الله عليه وسلم پسې نيږدې زينب بنت جحش وفات شوه نومونږته پته ولګيده چې درسول الله صلى الله عليه وسلم مقصد دلاس اوږدوالي نه سخاوه اوزينب په ټولو بيبيانوکې ډيره سخيه وه، په خپل لاس به يې وړی اوبدله اوبيابه يې هغه مال دالله په لارکې صدقه کولو.

اوبل فضيلت يې دادی چې دسورة الاحزاب اخيرطرف اکثر آيتونه ددې په باره کې نازل شوي دي اودحجاب مسئله هم دهغې دقيصې په باره کې نازل شوې ده.

دهغې ديانت اودينداري :

زينب بنت جحش رضي الله عنهاډيره زاهده، اوډيرو ښو صفاتو خاونده وه او په دې خبره باندې عائشة رضی الله عنهاچې دزينب بن ده اوپه ټولوبيبيانوکې ددې دواړوترمنځ ډير بنتوب و، خودهغې باوجود عائشة رضی الله عنهاددې صفت ذکرکوي اوهغه فرمائي:

**أَنَّ عَائِشَةَ، زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ:.......... وَهِيَ الَّتِي كَانَتْ تُسَامِينِي مِنْهُنَّ فِي الْمَنْزِلَةِ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ أَرَ امْرَأَةً قَطُّ خَيْرًا فِي الدِّينِ مِنْ زَيْنَبَ. وَأَتْقَى لِلَّهِ وَأَصْدَقَ حَدِيثًا، وَأَوْصَلَ لِلرَّحِمِ، وَأَعْظَمَ صَدَقَةً، وَأَشَدَّ ابْتِذَالًا لِنَفْسِهَا فِي الْعَمَلِ الَّذِي تَصَدَّقُ بِهِ، وَتَقَرَّبُ بِهِ إِلَى اللهِ تَعَالَى، مَا عَدَا سَوْرَةً مِنْ حِدَّةٍ كَانَتْ فِيهَا، تُسْرِعُ مِنْهَا الْفَيْئَةَ..... رواه مسلم في صحيحه.**

عائشه رضي الله عنهاچې درسول الله صلى الله عليه وسلم بي بي ده فرمايي: ................ زينب هغه بي بي وه چې له ماسره په مرتبه کې مشابه وه (يعني درسول الله صلى الله عليه وسلم په بيبيانوکې زينب رضی الله

عنهاماسره په مرتبه کې نیږدې وه) اومانه ده لیدلې یوه ښځه هیڅکله هم چې غوره وي په اعتبارددین سره دزینب رضی الله تعالی عنها ځخه اوډیره ویریدونکې دالله جل جلاله نه اوډیره رشتینې په خبروکې اوډیره وصل کونکې وه خپلولي لره اوډیره صدقه کونکې اوسخت کړونکې (زحمت کونکې) وه د خپل ځان لره په هغه کارکې چې دهغې په وجه به یې صدقه کوله اوځان به یې الله تعالی ته پرې نیږدې کولو ،سوی ددی نه چې په هغې کې لږه غصه اوتیزي وه چې دهغې نه به یې بیرته زررجوع کوله . (داحدیث امام مسلم په خپل صحیح کې نقل کړی دی) .

دهغې دزهداوسخا:

یوځل عمربن الخطاب رضی الله عنه هغې ته دبیت المال ځخه دهغې سهم ورولیږه، نوکله یې چې مال ولیده نوهغې داخیال وکړوچې ګویا عمر رضی الله عنه دیته ددې لپاره رالیږلی دی چې دایې تقسیم کړي، نو هغې وویل :الله جل جلاله دی عمررضی الله عنه ته بخښنه وکړي ،زمانه بغیرزمانورې خویندې (دیني خویندی) ډیرې ښې پوهیږي په تقسیم ددې مال باندې زمانه، چا ورته وویل : داټول ستادي ،نوهغې سبحان الله کلمه ولوستله اوخپل مخ یې پټ کړواوبیایې وویل : په دې یوڅادرواچوئ

اوبیایې خپلې وینځې ته وویل :

ددې لاندې لاس داخل کړه اویوموټی ترې راواخله اوفلاني یتیمانوته یې ولیږه نویویوموټی یې صدقه کولو تردې چې نیږدې وي چې ټولې خلاصې شي نوهغې وینځې یې ورته وویل :

الله ج دې تاته بښنه وکړي قسم په الله په دې کې خوزمونږحق هم شته.

هغې ورته وویل : بس داځه چې پاتې شول داستاسوشول، نوهغه چې مونږحساب کړې هغه (۸۵) درهمه وو ،بیایې اسمان ته لاس پورته کړه او ویې ویل : اې الله راتلونکي کال ته مادعمر رضی الله عنه مالونوته مه پاتې کوي ، راویه وایي : چې کال لانه ووپوره شوی چې هغه وفات شوه.

دهغې دزواج قیصه :

درسول الله صلی الله علیه وسلم یوغلام ووچې زیدبن حارثة رضی الله عنه نومیده. دازید په ماشومتوب کې دخپل مورځخه ورک شوی ووبیا د خدیجة الکبری رضی الله عنهاوراره حکیم بن حزام په شام کې واخیسته اومکې مکرمې ته یې راوسته اوکله یې چې راوسته نوخپلی عمة خدیجة الکبریٰ ته یې وویل :

چې مادشام ځخه غلامان راوستي دي که ستاپه کې کوم یوته ضرورت وي نوتری وایېخله ،خدیجة الکبری رضی الله عنهاورځخه زیدبن حارثه واخیسته دابیا د هغې سره ووکله یې چې درسول الله صلی الله علیه وسلم سره واده وشو ، نوداخپل غلام یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هدیه کړو ،رسول الله صلی الله علیه وسلم دځان سره اوساوه ، خپلوان یې ورپسې ګرځیده ،چاورته وویل په مکه مکرمه کې دی ، هغوی ورپسې مکې مکرمې ته راغلل .کله چې درسول الله صلی الله علیه وسلم سره مخامخ شول نوهغه ته یې وویل : چې دازمونږ وراره دی مونږته یې واپس کړه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل :

دیته به اختیارورکړو که تاسو سره تللو نو زه یې نه منع کوم اوکه په خپله خوښه پاتې کیده، نو تاسو به یې په زوره نه بوځئ ،هغوي وویل: داخوډیره دانصاف خبره ده ، کله یې چې زید ته اختیارورکړ، نوهغه وویل : چې زه دخپل مولا سره حصاریږم اوتاسو سره نه ځم په دې خبره ورسره درسول الله صلی الله علیه وسلم محبت نورهم ډیرشو ،ازادیې کړاو بیا یې د مکې مکرمې خلک ګواه کړل چې دا زماد ځوی شانته شو ، نن نه پس به دازماځوی ګڼل کیږي ،نودهغې ورځې وروسته به هغه ته خلکو زید بن محمد ویلو ،کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پیغمبر شو نو ده پرې ایمان راوړو ،اوپه همدغه حال باندې پاتې وو ، رسول الله صلی الله علیه

وسلم ورته واده هم وکړو او دخپل پلار وینځه ام ایمن رضی الله عنهایې ورته وکړه چې دهغې نه الله تعالی اولادونه هم ورکړل اسامه رضی الله عنه او ایمن ، کله یې چې مدینې منورې ته هجرت وکړونو هلته یې ورته بل واده هم وکړو او د خپلې ترور لور زینب بنت جحش رضي الله عنهایې ورته وغوښتله ،زینب بنت جحش رضی الله عنها او دهغې ورور د جاهلیت د تقالیدو په اساس دهغه نکاح بده وګڼله او دا یې ذهن ته راغله چې دا ازاد شده غلام دی اوزه اصیله ښځه یم خو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته ویل چې نکاح ورسره وکړه او د سورة الاحزاب دا ایت کریمه نازل شو:

**وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا** (36) سورة الاحزاب .

نو هغه دزید سره نکاح ته راضي شوله، لیکن د واده نه وروسته هم ددوی کورجوړنه شولو او زینب رضی الله عنها به سختي کوله چې په دې وجه باندی دزید خوښه نه وه او غوښتل یې چې طلاق ورکړي، خو رسول الله صلی الله علیه وسلم به منع کولو او دهغه سره په زړه کې دا خطره وه، هسې نه چې الله تعالی ما ته امر وکړي چې ته یې په نکاح واخله او بیا به خلک را پوری خبری کوي چې دخپلې اینګور سره یې نکاح وکړه ددې وجې نه قران کریم هغه آیت نازل کړو :

**وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشَاهُ ....**(37) سورة الاحزاب .

نو زید بن حارثة رضی الله عنه طلاق ورکړو کله یې چې عدت پوره شونو رسول الله صلی الله علیه وسلم زید ته وویل : ورشه اوزما لپاره یې غوښتنه وکړه ،زید رضی الله عنه وایي : کله چې راته رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره وکړه نو هغه زما په زړه کې ډیره لویه شوه اوزه ورغلم ،اودروازې طرف ته مې شا واړوله اوما ورته وویل : اې زینب ! رسول الله صلی الله علیه وسلم زه تا ته رالیږلی یم او ستا تذکره یې کوله ، هغې راته وویل :

زه ترهغې هیڅ نه کوم ترڅو چې استخاره مې نه وي کړې نو هغه خپلې مصلې ته پاڅیدله نو الله تعالی دا آیت کریمه نازل کړو:

**فَلَمَّا قَضَى زَيْدٌ مِنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا** (37)

پس کله چې زید دهغې څخه خپل حاجت پوره کړونو مونږ تا ته په نکاح درکړه، دې لپاره چې نه وي په مؤمنانو باندې تنګسیا په نکاح د بیبیانو د متبناګانو کې، کله چې هغوی ترې خپل حاجت پوره کړي او وه کار د الله تعالی کړی شوی .

نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغې د اجازت څخه بغیر دهغې کور ته ورغی ، همدا وجه وه چې زینب رضي الله عنها به کله دنورو بیبیانو سره خپل بنتوب کولو او هری یوی به خپل فضائل بیانولو نو دی به ویل : تاسو خپلو خپلوانو په نکاح ورکړي یاستی اوزه الله جل جلاله د اسمانونو څخه پورته په نکاح ورکړې یم او دا په پنځم کال دهجرت باندې وو.

دزینب رضی الله عنها ولیمه :

انس رضی الله عنه فرمائي :

رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوي ښځې هم دومره ښایسته او ډیره ولیمه نه ده کړې لکه چې په زینب بنت جحش رضی الله عنهایي کړې ده ،ثابت ورته وویل : په هغې یې څه شی کړي وو؟

هغه وویل : هغوی ته یې ډوډۍ او غوښه ورکړې وه تردې چې خلکو نه پاتې شوه .

دبخاري په روایت کې ذکردي چې : ګډه یې پرې ذبحه کړې وه .

دزینب رضی الله عنها پخوانی نوم :

امام مسلم په خپل صحیح کې حدیث نقل کړی دزینب بنت ابي سلمة رضی الله عنهما څخه هغې فرمائلي دي : زما نوم بره وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه نوم په ما باندې بدل کړو او زینب یې را باندې کېښود

اوهمدارنگه زینب بنت جحش په رسول الله صلی الله علیه وسلم داخله شوه اودهغې نوم هم برة وه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته نوم بدل کړواو زینب یې پری کېښودلو.

## دحجاب نزول :

دحجاب مسئله هم دزینب بنت جحش متعلق نازل شوی دی په حدیث کې راځي انس رضي الله عنه فرمائلي دي : کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دزینب سره نکاح وکړه نوقوم یې ولیمې ته راطلب کړو، کله چې دخوراک څخه فارغ شول ،رسول الله صلی الله علیه وسلم پاڅیده دی لپاره چې داخلک هم پاڅي. نورخلک هم ورسره پاڅیدل یودرې کسان پاتې شول کیسې یې کولې رسول الله صلی الله علیه وسلم دکورڅخه ووتلو، وروسته چې راغی ګوري چې کسان همغه شانته ناست دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم بیرته ووتلو نوپه دې کې هغه کسان پوه شول هغوی پاڅیدل اولاړل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ماخبرورکړو چې خلک ووتل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې بیرته راغی ماغوښتل چې داخل شم نوپرده یې رازوړنده کړه اودا ایت نازل شو:

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ أَبَدًا إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمًا (53) إِنْ تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا** (54).

## دهغې بنتوب دعائشه رضی الله عنهاسره :

کله چې دیو انسان دوه یا زیاتې ښځې وي نوهغوی په خپل منځ کې بنتوب کوي اودیوبل سره خلاف کوي دادهغوی په طبیعت اومزاج کې اغېړل شوې خبره ده نود رسول الله صلی الله علیه وسلم بیبیانوترمنځ به هم کله داسې خبری راتللی ،درسول الله صلی الله علیه وسلم بیبیانېدوه برخې وې په یوجماعت کې عائشه ،حفصه ،صفیه ،سودة رضی الله عنهن وې اوپه بل جماعت کې زینب ،ام سلمة ،ام حبیبة،جویریة وه خلکوته دا معلومه وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دعائشه سره ډیرمحبت کوي، نو چا به چې هم په ګاونډیانوکې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته څه خوراکي شیان هدیه کول نو د عائشه د نوبت په ورځ به یې رالیږل ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم بیبیانی راجمع شوې اوام سلمة رضی الله عنهاته یې وویل :

ته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ووایه چې که څوک زمونږکورته هدیه رالیږي، نوهره ورځ یې چې خوښه شي رالیږي دي اودعائشه ورځ دی نه خاص کوي داخبره ام سلمه رضی الله عنها رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وکړه هغه څه جواب ورنکړو بیبیانو ورته وویل : بیایې ورته ووایه، هغې ورته دري ځله داخبره وکړه، نو په دریم ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل : ماته دعائشة په باره کې تکلیف مه راکوه قسم په الله زه چې کله د بیبیانو سره په بستره کې یم نووحي نه راځي مګردعائشه رضی الله عنها په بستره کې چې یم راځي،

نو ام سلمة رضي الله عنهاوویل :الله ته مې دی توبه وي چې زه دالله رسول ته تکلیف ورکړم . بیبیانوبیافاطمه رضی الله عنهاراوغوښتله اوهغې ته یې وویل : چې ته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ووایه ! هغه راغله اود رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې خبره وکړه هغه صلی الله علیه وسلم ورته وویل :

ای لورې ! ته دهغه چاسره محبت نه کوې چې زه ورسره محبت کوم ؟ هغې وویل : ولې نه یارسول الله !

هغوی بیازینب بنت جحش رضی الله عنهاراولیږله هغه چې راغله سختی سختی خبری یې وکړی اوعائشه ته یې هم خوله ورواچوله رسول الله صلی الله علیه وسلم ناست ووعائشه ته یې کتل چې هغه څه وایې ،په دی کې عائشه رضي الله عنها پوه شوله چې رسول الله صلی الله

عليه وسلم زماپه ځواب ورکولونه خفه کيږي، نوهغې ته يې مخ ورواړولو اوداسې څه يې ورته وويل : چې د هغې په خوله کې يې لاړې وچې کړې رسول الله صلی الله عليه وسلم عائشة رضی الله تعالی عنهاته وکتل او ويې ويل : دادابوبکر لور ده . (بخاري وغيره) .

## د رسول الله صلی الله عليه وسلم خفه کيدل دزينب بنت جحش څخه :

يوورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم زينب بنت جحش ته وويل :

دا خپله يوه اوښه دې خپلې خورصفيه رضی الله عنهاته ورکړه، د هغې اوښ کمزوری دی هغې وويل :

دې يهودۍ ته يې ورکړم. په دی خبره تړې رسول الله صلی الله عليه وسلم خفه شو تر يوې مياشتی پورې يې کورته ورنغی، مياشت وروسته بياورغی زينب رضی الله عنهاوايي ماخپله بستره اوچته کړی وه، ځکه زه د رسول الله صلی الله عليه وسلم دراتلو څخه مايوسه شوې وم ،اوره مې اغږل چې په دې کې مې ديوسرې سوری وليده ماوويل :چې داسوری به دچاوي ،دلته خوڅوک نه راځي او رسول الله صلی الله عليه وسلم خوخفه دی چې ومې کتل رسول الله صلی الله عليه وسلم وو ،هغه کټ چې مااړولی ووپه خپل لاس يې رانښکته کړ او پکې کښيناست ،زينب بنت جحش رضی الله عنهافرمايي: ماډيرې خوشحالۍ نه خپله هغه وينځه (خادمه) چې ماسره وه اومابه د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پټوله هغه مې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته هديه کړه .(مسند احمد).

## دشهدوقيصه :

حديث کې راځي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به هرماذديګرپه ټولوبيبيانوګرځيده اوبيابه يې شپه هغې ښځې کور ته وروړه چې دچاسره به يې نوبت وو ،خودزينب رضی الله عنهاسره به لږ ډير کيناسته، ځکه هغې سره شهد وو ،دهغه شهدو څخه به يې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته شربت جوړولو نو په دی به وخت لګيده ،نوعائشه رضي الله عنهااوحفصة رضی الله عنهاپه خپل منځ کې مشوره وکړه چې دهرچاکورته راغی نوهغه به ورته ووايې : يارسول الله ستاد خولی څخه دمغافيرو بوی راځي – مغافير يو قسم ته بوټی دی چې دشهدو مچۍ پرې کيني، نودهغه بوټي خوندبياپه شهدوکې هم راځي – نوکله چې دعائشه کورته ورغی هغې ورته داخبره وکړه، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل :

ماخومغافيرنه دي خوړلې خو دزينب سره مې شهد څکلي دي اونوربه يې نه څکم، خوته به چاته نه وايې اوکله چې د حفصه کورته ورغې هغې هم ورته دغه خبره وکړه نوهغې ته يې هم همغه خبره وکړه کومه يې چې عائشه ته کړې وه اودايې ورته وويل : داخبره چاته مه کوه هغوی يوبل ته داخبره وکړه نو الله جل جلاله سورة التحريم نازل کړو او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې وويل : ولې هغه شی په ځان حراموې چې الله درته حلال کړي دي او دکفارې امر يې ورته وکړاوعائشه اوحفصة رضی الله عنهماته يې عتاب (ملامتيا) ورکړه . (بخاري وغيره ).

## زينب رضی الله عنهاموقف دعائشه دتهمت په باره کې :

حديث کې راځي عائشه رضی الله عنهافرمايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم زمامتعلق دعلی بن ابی طالب ،اسامة ،اوبريرة ،او زينب بنت جحش څخه پوښتنه کړې وه چې ستاپه عائشه څه ګومان دی، هرچا خپله مشوره ورکړه، کله يې چې زينب رضی الله تعالی عنها ته وويل : چې ستاڅه رايه ده ؟ هغې وويل : احمی سمعي وبصري يارسول الله .

زه دخپلوغوږونو اوسترګوحفاظت کوم يعنې ماپه کې څه عيب نه دی ليدلی ،عائشه رضی الله عنهاوايي:

هغه الله ج دخپلې تقوی په وجه وساتله اوخور يې حمنة بنت جحش ددی له خاطره په ماتهمت ولګولونوهلاکه شوم په هغه خلکو چې هلاک شول يعنی په دی نقصان کې واقع شواوحدپرې جاري شو .(بخاري وغيره) .

دزينب رضی الله تعالی عنها ټول مرويات :

دزينب رضی الله تعالی عنها څخه ټول (١١) احاديث نقل دي ،دهغې دروايـاتودکموالي وجه داده چې هغه ژروفات شوی اوډيره نه ده پاتې شوې، ځکه ترې صرف (١١) احاديث نقل دي .

زينب بنت جحش رضی الله عنهاوفات :

حديث کې راځي عائشة رضی الله عنهافرمايي:
مونږد رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې په مونږکې به په تاپسې څوک ژر وفات کيږي ، رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل : دچاچې په تاسو کې لاس اوږد وي ،نومونږ هر يوې خپل لاس اندازه کولو ، په ټولوکې د سودة بنت زمعه رضی الله عنها لاس اوږد وو، بيا د رسول الله صلی الله عليه وسلم پسې ژر زينب بنت جحش وفات وشولونومونږته پته ولګيده چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم مقصد دلاس اوږدوالي نه صدقه کول دي اوزينب بنت جحش به په خپل لاس کارکولواودهغې څخه به يې صدقه کوله . (صحيح البخاري ،صحيح مسلم) .

مؤرخينوليکلي دي : چې زينب رضی الله عنهادعمربن الخطاب رضی الله عنه په خلافت کې په (٢٠) يا (٢١) هجري کال باندې د (٥٣) کالوپه عمر وفات شوه .

وصلی الله تعالی علی خيرخلقه محمدوآله و اصحبه اجمعين .

وکتبه اخوکم في الله العبدالفقير الی الله تعالی :
ابوحمزة قاسم بن محمدالافغاني .
وانتهی من کتابته يوم الاحدبتاريخ : ١٤٣٥\٦\١٣ للهجرة الموافق :
٢٠١٤\٤\١٣م .

★: په زور د چا ملګرتيا نه ترلاسه کېږي، ځکه چې په زور خو به خلکو غلامان ساتل، يا هم ځناور خلك د ځان لپاره ساتي، پښتانه هم وايي، په زور کلي نه کېږي.

★: د هر هغه چا چې له ښو او هوښيارو خلکو سره اړيکه پرې شي، په بدمرغۍ او بدبختۍ ککړ شي او ذلت يې په نصيب شي.

★: روڼ زړه (روشان دل) د الله تعالی له خوا لوی نعمت دی هغوی چې روڼ زړه لري او د ښه زړه څښتنان دي هر کار به يې سم وي او هره لاره به يې رڼا وي




د محترم مولوي صیب محمد نعیم احمدي ژوند لیک



مولوي امان الله حسن

شهید مولوي محمد نعیم احمدي د حاجي ملا نور احمد زوی د کندز ولایت دچهاردرې ولسوالۍ د حاجي امان الله د کلي اوسیدونکی او په کال ۱۳۵۲ل کې زېږېدلی ؤ، کله چې روسانو په ګران هېواد (افغانستان) باندې یرغل وکړ، شهید مولوي صیب له خپلې کورنۍ سره په کال ۱۳۲۳ه ش کې ګاونډي هېواد پاکستان ته هجرت وکړ، هلته د جلاله په کیمپ کې له یوې میاشت اوسېدو وروسته دپنجاب په مشهور کیمپ میاوالي کې یې د زندګۍ شپې او ورځې تېرولې.

دیني زده کړې:

شهید مولوي صیب لومړنۍ زده کړې په همدې کیمپ کې په یوه دیني مدرسه کې، چې د حرکت ګوند له لوري جوړه شوې وه پیل کړې، وروسته بیا شهید مولوي صیب د نورو سبقونو ویلولپاره مسکین کیمپ ته کډه وکړه اوهلته یې په یوه مدرسه کې خپل درسونه شروع کړل.

په کال ۱۳۲۹ه ش کې شهید مولوي صیب په دارالعلوم حقانیه کې داخله وکړه اوهلته یې دویمه درجه شروع کړه، چې بیا یې تر پنځمې درجې پورې خپل درسونه په همدې مدرسه کې وویل.

شهید مولوي صیب بیاځه درسونه په نورو مدرسو کې وویل، په کال۱۳۷۶ ه ش کې یې یو وار بیا په حقانیه مدرسه کې داخله وکړه او په همدغه کال یې د تکمیل کتابونه په یاده مدرسه کې وویل، په همدې کال د اسلامي امارت د مجاهدینوله لوري د جلال اباد ښار فتح شو.

شهید مولوي صیب چې له جهادسره ډېره زیاته مینه لرله، له ځه ملګرو سره یوځای د جلال اباد ښار ته تشکیل وکړ اوهلته یې د جهاد په ګرمو سنګرونو کې شپې او ورځې تېرولې.

په دې سفر کې له مولوي صیب سره الحاج حافظ عبد القدیر حقاني هم ملګری و، حافظ صیب نه مې د دې سفر په هکله معلومات وغوښتل؟ هغه داسې معلومات راکړل، ما او شهید مولوي صیب دوه میاشتې په جلال اباد کې تېرې کړې، چې بیا د کابل ښار د اسلامي امارت د مجاهدینوله خوا فتح شو، له ملګروسره یوځای مونږ هم دکابل ښار په لور روان شو؛ کله چې کابل ښار ته ورسېدو هلته له ځه وخت تېرولو وروسته زمونږ تشکیل د کابل شمال لور ته، چې دا وخت د جګړې لومړۍ کرښه وه وشو، په شمالي سیمه کې له دښمن سره ډېرې خونړۍ جګړې وشوې، د

اسلامي امارت مجاهدينو تر سالنگونو پورې سيمه فتحه کړه، البته دا سيمه ددښمن تر اغيز لاندې وه ، چې ولس يې داسلامي امارت مجاهدينو پر ضد ولمساوه، په نتيجه کې خلکو او دښمن مجاهدين محاصره کړل، ګڼ شمېر مجاهدين، چې شمېر يې ۱۵۰۰ تنو ته رسېده دښمن بنديان کړل، په بنديانو کې شهيد مولوي صيب او حافظ عبدالقدير هم شامل و، تر يو مياشت بند تېرولو وروسته د دښمن د څنو بنديانو په تبادله کې راخوشې شول.

شهيد مولوي صيب په کال ۱۹۹۸زېږديز چې له ۱۴۱۹ق سره سمون خوري، د لويې دورې لپاره حقانيه مدرسه کې داخله وکړه، او د مبارکو احاديثو مشهور کتابونه يې په ياده مدرسه کې وويل ، او په ټولو امتحانو نوکې مولوي صيب ښې نمرې تر لاسه کړې، دهمدې کال په پای کې د نورو فاضلانو په کتار کې شهيد مولوي صيب ته هم د يادې مدرسې د مشايخو او راغلو مېلمنوله لوري د فضيلت پګړۍ د شانداره او ښکليو مراسمو په پاي کې ور په سر کړل شوه.

تدريس او علمي خدمتونه:

شهيد مولوي صيب د طالبۍ پر مهال هم ګڼ شمېر کتابونه تدريس کړي و. کله چې فارغ شو او د زيات مسئوليت احساس ورسره شو او له طالبۍ او فراغت نه وروسته يې د وخت د توپير احساس وکړ، نو هوډ يې وکړ، چې خپل پلرني کلي ته کډه وکړي، شهيد مولوي صيب خپل کور او کلي ته لاړ، او هلته يې د يوې دينې مدرسې د بنسټ ډبره کېښوده، او نوم يې ورته نجم المدارس غوره کړ.

شهيد مولوي صيب له څو نورو مولوي صيبانو سره په ياده مدرسه کې درس پيل کړ، او تر څنګ يې د حفظ يوه شعبه هم په ياده مدرسه کې جوړه کړه، چې ګڼ شمېر دقران کريم دحفظ تږيو خپله تنده په کې ماته، او د قران کريم ملغلرې يې په خپلو مبارکو سينو کې وپېيلې، او د فراغت سندونه يې تر لاسه کړل .

شهيد مولوي صيب ياده مدرسه په ډېرو ستونزو او خواريو جوړه کړه، درسونه يې په کې پيل کړل، په لومړي سر کې له شهيد مولوي صيب سره ګڼ شمېر طالبان دېره شول، له ابتدايي کتابونو نيولې ان تر دورې پورې کتابونه په کې د شهيد مولوي صيب په ګډون د نورو استاذانو له لوري تدريس کېدل، خو زيات شمېر طالبان به د شهيد مولوي صيب په درسونو کې کښېناستل، شهيد مولوي صيب په ټولو فنونو کې ډېر شهرت درلود، خو په فقه، نحو، منطق، معاني، د قران کريم په تفسير او د حديثو په کتابونو کې يې خورا زيات شهرت در لود، سربېره پر دې شهيد مولوي صيب ډېر ښکلی او په زړه پورې بيان (تبليغ) درلود، چې په کومو مجالسو کې به شهيد مولوي صيب بيان شروع کړ، نو په اورېدونکو کې به يې يو احساس او انقلاب را پيدا کړ، مړه او بيده زړونه به يې راوېښول، چې په نتيجه کې به يې د هغې موضوع لپاره ګڼ شمېر لارويان پيدا کړل.

شهيد مولوي صيب ډېر کلونه په خپله مدرسه کې کتابونه تدريس کړل، او ګڼ شمېر شاګردان يې وروزل. کله چې امريکا او متحدينو يې په ګران هيواد (افغانستان) يرغل وکړ، علماء کرام او دين دوسته خلک په يو او بل نوم شکنجه او ځورول کېدل، نو شهيد مولوي صيب هم څو ځله د ګوډاګي حکومت له لوري وځورېد ، چې بيا شهيد مولوي صيب د ځينو مخلصو دوستانو په مشوره او خوښه خپله مدرسه او کلی پرېښود، او د علي اباد ولسوالۍ مربوط د لاله ميدان د کلي په يوه مدرسه کې طالبانو ته درسونه شروع کړل، څو کاله شهيد مولوي صيب په همدې مدرسه کې پرلپسې تدريس وکړ، وروسته بيا شهيد مولوي صيب پاکستان ته لاړ او هلته يې د اکوړه خټک په کيمپ کې د فيض القرآن په مدرسه کې د څه وخت لپاره تدريس وکړ، او بېرته خپل ګران تاتوبي

(افغانستان) ته ستون شو ، شهيد مولوي صيب نور دا مناسبه وګڼله چې درس او تدريس د څه مودې لپاره ودروي، او په ښکاره توګه د کفارو پر ضد وسلوال جهاد پيل کړي، او د الله پاک عظيمه فريضه (جهاد) پر ځای کړي،چې بيا شهيد مولوي صيب د جهاد سنګرونه تاوده کړل، ډېر کسان يې د جهاد لپاره برابر کړل، چې وروسته به د شهيد مولوي صيب د جهادي کارنامو کې پرې وغږېږو.

د شهيد مولوي صيب شاګردان:

شهيد مولوي صيب ګڼ شمېر شاګردان روزلي او تربيه کړي و ، چې شمېر يې زرګونو ته رسېږي، د ځينو مشهورو شاګردانو يادونه يې دلته مناسب بولو ، د اسلامي امارت له لوري د کندز ولايت لپاره نومول شوی والي مولوي صيب عبد الرحمن چې دا مهال د پلچرخي کرغېړن زندان د پنجرو تر شا د ژوند شپې او ورځې تېروي، مولوي صيب اسد الله چې يو کال يې د اسلامي امارت له لوري د کندز ولايت د والي او څو کاله يې د معاون په صفت دنده تر سره کړې، د اسلامي امارت له لوري د بغلان ولايت لپاره نومول شوی والي ملا رحمت الله چې په محمد مشهور دی، قاري صيب عبد الواجد چې دا مهال د کندز ولايت د نظامي کميسيون د مشر په صفت خدمت کوي، مولوي صيب سيد رحيم رحماني، مولوي صيب عبد المنان نيازی، مولوي صيب احسان الله او نور...

د شهيد مولوي صيب جهادي کارنامو ته لنډه کتنه:

شهيد مولوي صيب له ورکتوبه له جهاد سره ډېره مينه لرله، په کال ۱۳۷۲ه ش کله چې د خوست ولايت د اسلامي امارت د اتلانو له لوري فتحه شو ، دغه وخت مولوي صيب په دار العلوم حقانيه کې پنځمه درجه ويله، چې بيا د رخصتيا نو پر وخت په يو تشکيل کې شهيد مولوي صيب ياد ولايت ته ولاړ، او هلته يې د جهاد په ګرمو سنګرونو کې شپې او ورځې تېرولې، له څه جهادي خدمتونو وروسته بېرته پاکستان ته ستون شو او په خپلو درسونو يې شروع وکړه، کله چې بيا جلال اباد د اسلامي امارت د مجاهدينو له لوري ونيول شو ، دغه مهال شهيد مولوي صيب په حقانيه مدرسه کې د تکميل کتابونه ويل،چې بيا په يو تشکيل کې ياد ولايت ته لاړ او هلته په جهادي چارو کې له خپل ملګرو سره بوخت و.

په کال ۱۳۷۵ه ش کله چې د ګران هېواد افغانستان پلازمېنه (کابل) د اسلامي امارت د مجاهدينو له لوري ونيول شو ، نو شهيدمولوي صيب هم په دې جګړه کې برخه درلوده، چې بيا په همدې کال شهيد مولوي صيب د سالنګونو په سيمه کې د دښمن له لوري ونيول شو ، له څه مودې بند تېرولو وروسته بيا د دښمن د بنديانو په تبادله کې را خوشې کړای شو.

هغه مهال چې کندز ولايت د دښمن له لوري کلک محاصره و او ځمکنۍ لارې يې ټولې د دښمن له خوا تړل شوې وې، يواځې د هوا له لوري به د مجاهدينوا اکمال کېده، دغه مهال شهيد مولوي صيب د اسلامي امارت له مجاهدينو ورونو سره بې ساري قربانۍ او همکارۍ وکړې .

اوس مهال هم شهيد مولوي صيب خپله سيمه کې فعاله ډلګۍ لري، چې د مولوي صيب له شهادت وروسته د دې ډلګۍ سرپرستي د ده د يو تکړه ملګري (مظلوم) پر غاړه ده، چې الحمد لله په جهادي امورو کې فعاله ونډه لري .

د شهيد مولوي صيب خدمتونو ته لنډه کتنه:

کله چې کندز ولايت د اسلامي امارت مجاهدينو له لوري ونيول شو ، شهيد مولوي صيب دچهاردرې ولسوالۍ د علماؤ د شورى د مرستيال په صفت خدمت وکړ، چې له څه مودې خدمت وروسته مشرانو دی د علماو د شورى د رئيس په صفت په دنده وګماره، له څه مودې خدمت وروسته نوموړی د بغلان ولايت د

میکانیزې درئیس په صفت په دنده وګمارل شو، چې په ډېر اخلاص او صداقت سره یې دنده پر مخ بېوله.
کله چې د امریکا له یرغل وروسته د الله په فضل سره د اسلامي امارت مجاهدینو یو ځل بیا د ګران هېواد ډېرې سیمې تر خپل کنټرول لاندې راوستې، شهید مولوي صیب د اسلامي امارت د معارف د محترم وزیر له لوري د کندز ولایت د معارف د مسؤول په صفت په دنده وګماره، چې بیا شهید مولوي صیب د معارف په ځانګه کې په نوموړي ولایت کې ډېر په زړه پورې خدمتونه وکړل.
په ټولو مکاتبو کې یې د اسلامي امارت درسي نصاب په بشپړه توګه جاري کړ او په هر کلي کې یې د قران کریم د زده کړې لپاره حلقې جوړې کړې، چې د تکړه استادانو له لوري اداره کېدې.
وخت په وخت به د ولسوالیو د معارف مسؤولینو دیادومکاتبو او حلقو کلکه څارنه کوله.
کله چې د اسلامي امارت د معارف مشرانو د معارفو په برخه کې د شهید مولوي صیب نه ستړې کېدونکې خدمتونه وکتل، نو بیا یې شهید مولوي صیب د ټولو شمالي ولایتونو د معارف د عمومي مسؤول په صفت په دنده وګماره، شهید مولوي صیب د شهادت تر وخته پورې د خپل ولایت د معارف په خدمت بوخت و.

شها دت یې:
شهید مولوي تېر کال د لوی نظامي کمیسیون له لوري د مزار شریف د مجاهدینو د حال احوال لپاره له یو بل ملګري سره یاد ولایت ته سفر وکړ. څه وخت چې شهید مولوي صیب هلته له مجاهدینو سره تېر کړ، د فیض اباد په ولسوالۍ کې چې د شبرغان او مزار شریف تر منځ پرته ده، د دشمن له لوري په یوه بې رحمانه چاپه کې له څو ملګرو سره شهید کړای شو، روح دې یې ښاد او جنت الفردوس دې یې ځای وي. آمین

هېره دې نه وي چې شهید مولوي صیب پنځه اولاده (دوه زامن او درې لوڼه) تر شا پرېښودل، چې یو زوی (احمد) یې په دارالحفاظ حقانیه کې د الله د سپېڅلي کلام پر حفظ مشغول دی.

★: بې همته خلك د نورو خلكو په كارونو او تورو باندې غړېږي، خو خپله هېڅ توره او كار نشي كولای.

★: لیوه شپون نه جوړېږي، خو موږ لیوان شپانه كړي دي او ټول وطن یې د تباهۍ په لوري روان كړی دی هم مو قومي هم مو دیني ملایان هم مو سیاسي پوهان په حقیقت كې لیوان دي، او د انسانیت څرمن یې په ځان را اچولې ده.

★: هوښیار سړی د دښمن نه دوست جوړوي او ناپوه خپل ملګری دښمن كړي.

★: دومره برمته (ګروه) بده چې د اوښتلو په وخت یې زغم لري.

★: ښه خلك وایي **(اعوذ بالله من الكفر والدین).**
لویه خدایه له كفر او پور څخه پناه غواړم، یقیناً كفر او قرضه ډېر سخت او ناوړه دي.
(سعدي)

# سوله په اسلام کې ده نه په ډیموکراسۍ کې

حق پرست

اسلام هغه مبارک دین دی چې بشري ټولنې ته یې د امن او سوکالۍ پیغام راوړی او تاریخ ګواه دی چې کومو قومونو په اسلامي احکاماتو کلکې منګولې لګولې نو هغوی د امن او سکون له نعمت نه برخمن شوي دي.
اسلام دی چې خپلو پیروانو ته تل د نورو خلکو د مال، عزت او ناموس د ساتنې توصیه کوي، اسلام دی چې د حق او باطل د یوځای کیدو څخه منعه کوي او په دې طریقه د ظالم او مظلوم تر منځ توپیر پیدا کیږي، اسلام دی چې د درست بشریت د خیرښېګڼې لپاره یې له حکمتونو ډک قوانین راوړي دي.
او همدا اسلام دی چې د شرعي حدودو په نافذولو سره ټولو انسانانو ته د امن، سوکالۍ، پراخۍ، ورورولۍ، او د زړونو د سکون تضمین او هغه چاته چې اسلام ومني او پر ځان یې تطبیق کړي د دنیا او اخرت د بریالیتوب زیری ورکوي.
مګر یهود او نصارا چې د اسلام د نزول سره سم یې د اسلام سره د دښمنۍ متې را بډوهلې دي، تل په دې هڅه کې دي چې مسلمانان د خپل دین څخه په مختلفو پلمو راوګرځوي، په اسلامي احکاماتو کې یې مغشوش او شکمن کړي، دوی تل هڅه کوي چې خپل منسوخ شوي او تحریف شوي کتابونه او دینونه مسلمانانو او په مجموع کې ټولو انسانانو ته د کامیابۍ او خلاصون د یوې مؤثرې تګلارې په توګه وروپیژني.
اوسني یهودیان او صلیبیان چې د هیڅ دین تابع نه دي، او نه هم د رحم او کرم، امن او ورورولۍ په نوم څه پیژني، دوی په اسلامي امت د ظلمونو او وحشتونو داسې سیلاب راوستی چې په تاریخ کې یې ساری نه لیدل کیږي، په اور سوځول، په چړو وهل، په ژوندانه ښخول، د بمونو خولو ته د ماشومانو، سپین ګیرو او ښځو ټړل، په لوږه او تندې د نسل وژنې هڅه کول، د ایډز، سوزاک او ملاریا مرضونه په لوی لاس په دوایانو، خوراکي توکو او د څښاک په اوبو مسلمانانو ته انتقالول او....
الله جل جلاله خپل رښتوني بندګان او د اسلام پیروان د کفارو د دې دسیسو نه لا له وړاندې خبر کړي او مسلمانانو ته یې د جهاد حکم کړی دی، نن ورځ موږ د دې شاهدان یو چې په کومو سیمو کې جهاد نشته هلته د مسلمانانو پر وړاندې د کفارو ظلمونه او وحشتونه اوج ته رسیدلي دي او په کومو سیمو کې چې د اسلام

پیروانو د حی علی الجهاد ناره پورته کړی ده هلته کفار یواځې په دی هڅه کې دي چې خپل سرونه په امن کړي او بس. همدا اوس چې د افغانستان په شمول د نړۍ ګڼ شمیر هیوادونه د کفارو تر تسلط لاندی دي پر ضد یې وسله وال جهاد ادامه لري، مګر یهودیان چې د تاریخ تر ټولو مکاره طبقه ده، د مسلمانانو په منځ کې یې د سولې تر نامه لاندې داسې کمپاینونه په کار اچولي چې د کومو په ترڅ کې عامو مسلمانانو ته د جهاد په اړه ډول ډول شکونه پیدا کوي، موږ وینو چې د غربي میډیا د تبلیغاتو، څو ګوډو ماتو پلچکونو او بې کیفیته سرکونو زموږ ځینې ساده لوحه افغانان غولولي دي او دوی ته یې داسی تأثر ورکړی چې که چیرته جهاد نه وای نو اوس به افغانستان ګل او ګلزار و، اوس به دلته ډول ډول پرمختګونه شوي وو، افغانستان به پرخپلو ښپو دریدلی ؤ او امن، سوکالي، خوشحالي او پراخي به وه!!

حال دا چې الله جل جلاله په قرآن کریم کې مسلمانانو ته په بیلابیل ډول خبرداری ورکړی چې د یهودیانو په دسیسو او دروغجنو وعدو تیر نه وځی، نه خو دا خلک ستاسې دوستان دي او نه هم ستاسو خیر غوښتونکي، نو تاسې باید له دوی څخه همیشه جدا واوسی، کنه نو دا خلک به تاسې په فتنه کې واچوي ((چې نن ورځ دا هرڅه په خپلو سترګو ګورو)).

یهودي تبلیغاتي چینلونه چې کارمندان یې تر ډیره مستشرقین او منافقین دي، په اسلامي هیوادونو کې داسي پروپاګند کوي چې مسلمانان باید د یهودیانو او نورو کفارو څخه کرکه ونکړي بلکې د ټولو سره دې په وروري او همغږۍ ژوند وکړي!! همدغه تبلیغاتو په درسته اسلامي نړۍ کې ساده لوحه مسلمانان تیر ایستلي او د کفارو سره د ارام ژوند غوښتنه کوي، حال دا چې د بشریت د نا امنۍ اصلي سرچینه یهودیان دي، دوی چې له ځان پرته په دنیا کې بل هیڅوک د ژوند مستحق نه ګڼي د خیریه مرستو تر نامه لاندې د مسلمانانو په منځ کې نفرت او شرارت ته لمن وهي، د ټولې نړۍ مسلمانان د یهودو له شر څخه په امن نه دي، د دې ټولو علاج یواځې په جهاد سره ممکن دی نه په هغه سوله او ورولۍ چې یهودیان یې مسلمانانو ته پیشنهادونه کوي.

هغه ټولنې چې په افغانستان او نړۍ کې د سولې تر نامه لاندې په موجوده وخت کې کار کوي هغوی اکثره د یهودیانو له سرچینو خړوبه کیږي، ځکه په داسې حال کې چې د مسلمانانو سر، مال او ناموس خوندي ندی، اسلامي هیوادونو اشغال دي، د مسلمانانو عام وژنه او د اسلامي شعایرو توهین په مسلسل ډول دوام لري، مسلمانان د اقتصادي، سیاسي، نظامي او کلتوري فشارونو لاندې دي، مسلمانانو ته له جهاد نه پرته بله لاره نه ده پاتې، سوله یواځې له تسلیمۍ پرته بله کومه معنی درلودلای شي؟؟ د مسلمانانو د زوال خو دا حالت دی چې مسلمانان په خپلو هیوادونو کې د اسلام حدود چې د دوی د سر او مال د ساتنې تضمین ورکوي، نه شي عملي کولای نو سوله د چاسره او په کومو اصولو؟؟

که اسلامي هیوادونه او مسلمان ولسونه امن غواړي، سوله او پرمختګ غواړي باید لومړی خپلې مځکې د کفارو له تسلط نه بې له قیدو شرطه ازادی کړي او په دوهم قدم کې شرعي قوانین نافذ کړي هر څه به سم دم شي.

نه خو یهودیان او صلیبیان د اسلامي امت له غمه مړه دي او نه هم دومره ساده دي چې له خپلو خلکو نه د ټیکس په نوم راټولی شوې پیسې د مسلمانانو سره د

بلاعوضه مرستو په نوم مصرف کړي او په مقابل کې يې ځه و نه غواړي.
کله چې موږ د امريکايانو او اروپايانو لخوا په اسلامي هيوادونو کې بشري مرستې او د بشري مرستو ادارې(چې په کار بوختې دي) ګورو نو موږ ته دا پوښتنه راپيداکيږي چې ولې امريکايان دا دومره پيسې پخپله په امريکا کې نه مصرفوي حال دا چې په اوسني دور کې د امريکايانو د غربت کچه ۲۰ سلنې ته رسيدلې چې دا ډيره تشويش وړ ده، او همدا شان کله چې په اسلامي هيوادونو کې د نصرانيت د تبليغ او ترويج ادارې وګورو نو اکثره يې د امريکا سره اړيکې لري او له هغه ځايه خړوبيږي نو که چيرې امريکايان او متحدين يې دومره د نصرانيت په غم کې واى ولې د هغه نصرانيانو سره مرسته نه کوي چې اوس مهال په افريقا کې د لوږې او تندې له امله مري؟! دا او ديته ورته ډيرې پوښتنې دي چې بايد هيڅ يو با احساسه مسلمان ترې نا خبره پاتې نشي.
کوم پوځونه چې امريکايان يې اسلامي هيوادونو ته روزي هغوى هم په دې موخه نه روزل کيږي چې ګواکې امريکايان په اسلامي هيوادونو کې سوله غواړي، که چيرې امريکايانو سوله غوښتلاى نو ښه او اسانه لاره دا وه چې په هيڅ يوه اسلامي هيواد کې يې مداخله نه وه کړې، مګر اوسمهال ډيرې اسلامي هيوادونه د سعودي په شمول د امريکايانو د مستقيم او غير مستقيم اشغال لاندې دي، او هلته امريکايان د خپلو نورو فعاليتونو تر څنګ د يادو هيوادونو پوځيانو ته روزنه او تجهيزات هم ورکوي، که معاصر تاريخ ته چې د امريکا د لويې وچې له رامنځ ته کيدو وروسته ليکل شوى يو زغلنده نظر واچوو نو و به ګورو چې د نړۍ د ټولو بدبختيو عاملين يهودي او صليبي امريکايان دي، دوى تل هڅه کوي چې اسلامي هيوادونه او حتى هغه هيوادونه چې د دوى متحدين دي خو په نظريه کې ورسره اختلاف لري، اشغال او تر خپل استعمار لاندې وساتي، امريکايان چې د اسلامي هيوادونو پوځيانو ته کومې مرستې ورکوي هغه دومره مؤثرې دي چې په سبب يې د زياترو اسلامي هيوادونو لکه: مصر، ليبيا، تونس، يمن، اردن، عراق، افغانستان، سعودي، او نورو هيوادونو پوځيان د امريکايانو غوره او اخلاص مند غلامان جوړ شوي دي.
نو پرته له شکه ويلاى شو چې امريکايان د اسلامي هيوادونو له ټولنو او پوځيانو سره د دې لپاره مرستې کوي تر څو هغوى د غلامۍ په ځنځيرونو وتړي، تر خپل احسان لاندې يې راولي او هميشه ترې د اجيرانو په حيث کار واخلي، د دې خبرې ښه ثبوت دادى چې د فلسطين په ځمکه کې د اسرائيلي يهوديانو د ميشت کيدو ستر مخالف هيواد مصر او سعودي عربستان وو، خو اوس مهال مصر د اسرائيلو کلک دوست هيواد او اسرائيل يې په رسميت پيژندلى او د سعودي شاهان بيا د پردې تر شا د اسرائيلو ملاتړ او دوستي کوي!!
نور اسلامي هيوادونه هم د فلسطين د مظلومو مسلمانانو او د بيت المقدس د برخليک په اړه خاموش دي، همدا سلسله دوام لري، موږ وليدل چې پر افغانستان او عراق د امريکايانو د بريدونو پر وړاندې هيڅ يوه اسلامي هيواد غبرګون و نه ښوده بلکې برعکس يې ورسره پراخې مرستې هم وکړې!! او د دې هر څه په بدل کې امريکا دغو تش په نامه اسلامي حکومتونو ته چې نن ورځ په اسلامي هيوادونو مسلط دي، يو څه مادي امتيازات ورکړل او هم يې ورته ډاډ ورکړ چې امريکا له تاسو څخه راضي ده.
د نړۍ د امن او سوکالۍ لمړني دښمنان يهوديان دي چې

د امریکایانو له کلک ملاتړ نه برخمن دي، امریکایان په افغانستان او عراق کې له مجاهدینو غواړي چې ټوپکونه پرمځکه کیږدي تر څو سوله راشي خو بالمقابل په برما کې بودایان تقویه کوي چیرته چې د مسلمانانو عام وژنه دوام لري، په منځنۍ افریقا کې تروریست مسیحیان اکمالوي، په منځني ختیځ کې اسرائیلي یهودیان او په مالي کې فرانسویانو سره اوګه په اوګه همکاري کوي، په دغو ټولو هیوادونو کې د مسلمانانو پرضد جنګونه روان دي او د نړۍ امن ته له همدغو خلکو نه ګواښ متوجه دی، نو که امریکایانو سوله غوښتلای ولې یې د اسرائیلو له یهودیانو، د برما له بودایانو، د سوډان او منځنۍ افریقا له تروریستو نصرانیانو د ملاتړ پریکړه کوله؟!!

امریکایان په درسته نړۍ کې د کفارو د تروریستي اعمالو ملاتړ او ننګه کوي او همیشه په دې تکل کې دي چې اسلامي هیوادونه نا امنه وساتي، کورنۍ جګړې په کې رامنځ ته کړي او دوی خپلې شومې ګټې لاسته راوړي، په افغانستان د امریکایانو یرغل هم په همدې موخه وو چې دلته یې د اسلامي نظام تر چتر لاندې سوله، ارامي او خوشحالي ونشوه زغملای، اوس نو که څوک فکر کوي چې امریکایان دلته د سولې د راوستلو او یا د دغه هیواد د ابادولو لپاره راغلي دي، ستره اشتباه کوي، افغان ولس او په ځانګړې ډول هغوی چې دا دیارلس کاله د امریکایانو په وعدو او تبلیغاتو غولیدلي دي، اوس باید پوه شي چې امریکایان دلته خپل اهداف لري او کله به هم امریکایان د ترونونو او سولې له لارې بیرته و نه وځي، هغه امریکایان چې دلته یې په ټریلیونونو ډالر مصرف کړل او په زرګونو پوځیان یې ګوډ او مات شول، لیونیان نه دي چې زموږ د ولس غم به ورسره وي او یا به افغانستان سره بلاعوضه مرسته کوي، د امریکایي اشغال نه را وروسته چې افغان ولس ته کوم څه ډالۍ شوي هغه عبارت دي له: څو مات او ګوډ سرکونه، څو بې کیفیته پلچکونه، ایډز، ارتداد، سود، قمار، رشوت، قومي تعصبونه، د ګاونډیو هیوادونو سره د جنګ تر حالت رسیدل، ملاماتوونکي پوروونه، فحشا، او همداسې نور....

نو اوس به هم داسې یو څوک وي چې د سلیم عقل څښتن به وي خو د امریکایانو په پروپاګند به تیر وځي او یا به ورته یو څو پاکټه بسکویټ او یو څو منه غنم تر اسلام او هیواد ګران وي!!

هر مسلمان او په خصوصي توګه افغانان باید پوه شي چې امریکایان کله هم دلته سوله، پرمختګ او خوشحالي نه غواړي بلکې د هغوی دوه مقاصد وو، یو دلته د اسلامي امارت د شرعي نظام ختمول او دوهم دلته د نصرانیت تبلیغ او ترویج، چې دا هدفونه یې تر لاسه کړي دي خو اوس یې د پایښت په هڅو کې دي، رسنۍ یې هم ټولې دی ته استخدام کړي چې د افغانانو له زړونو د امریکایانو او نورو کفارو نفرت او کرکه وباسي او کفار ورته د ښو دوستانو په حیث ورو پیژني.

افغاني درواغجنې رسنۍ چې له امریکایي مرستو خړوبیږي په ډیره چالاکۍ او مکارۍ سره د نصرانیت لوري ته خلک دعوت کوي، له یوې خوا د سولې ډنډوری غږوي او له بلې خوا بیا له خپلو رسنیو داسې تبلیغات خپروي مثلاً: د کلیساګانو تاریخ، د کلیساګانو دودونه، د پاپانو ژوند ته یوه کتنه، د بوداییزم تاریخي پس منظر، د سریالونو له لارې بیا د مړو سوځول، د بتانو لپاره د عبادتونو ښودنه، د ښځو د ازادۍ په نوم ښځو ته د کفري ټولنو د ښځو لامحدوده ازادي ورښودل او ورته یې توصیف کول، د جهاد او

مدرسوپه اړه ناسم او زهرجن تبلیغات کول او په دې طریقه تری د خلکو زړونه تورول، د موسیقۍ او لهو لعب په اړه رنګین پروګرامونه او ګردي میزونه جوړول ....

خلص دا چې کفار زموږ د دین، خاورې او سر دښمنان دي، هیڅکله یې باید په غوږو او امید بخښونکو وعدو تیر نه وځو، او نه یې هم په اړه ښه ګومان وکړو، که څوک وایي چې طالبان دې جنګ بس کړي نو امریکایانو ته به دلته د پاتې کیدو څه پلمه پاتې نشي هغوی ته به دومره ووایو چې د کویت، سعودي عربستان، الجزایر، صومالیا، یمن، اردن، جاپان او جرمني تاریخونه او اوسنی وضعیت دې وګوري، او باید پوه شي چې په زور راغلي کله هم په رضا نه دي تللي او بیا دا امریکایان خو چې کله هم کوم هیواد ته تللي هلته یې پاخه اړولي او د بیرته وتلو خو څه یادونه هم نه کوي، اوس یې همدا پروسه په افغانستان کې هم روانه کړې ده، له طالبانو غواړي چې وسله پر مځکه کیږدي، د کفر غلامي و مني او بیا چې څه زموږ خوښه وي هغه به ترسره کیږي، په مظاهرو څه نه کیږي، هغه دی مصر ستاسې پر وړاندې ښه مثال دی چې جهاد په کې نشته د یهودو ګوډاګیان پکې واکمن دي په مظاهره چیانو یې څه حال جوړ کړی دی؟؟

همدا کیسه به بیا دلته هم تکراریږي، ولې چې امریکایان بیرته د وتلو په نیت نه دي راغلي، مګر هغه وخت چې د زور په واسطه وویستل شي، لکه روسان چې په زور وویستل شول، همداسې به امریکایان هم له دې هیواد نه په زور ویستل کیږي له زور پرته موږ ته بله لاره نه ده راپاتې. د نړۍ په هرګوټ کې چې د اسلام مجاهدین په جهاد بوخت دي هغوی په زوره جنګ ګولو ته اړ ایستل شوي دي، یا خو تری ځایي منافقو حکومتونو حقوق ترورلي او یا پرې مستقیماً امریکایانو، اسرائیلیانو، روسانو او فرانسویانو یرغلونه کړي دي، اسلام د امن او سولې دین خو د سوال او عذر دین نه دی، اسلام وایي مسلمان باید کله هم ذلیل نشي بلکې د مسلمانانو پر وړاندې باید کفار ذلیل او ټیټ سترګي وي، دا جدا خبره ده چې نن ورځ بالعکس مسلمانان له کفارو نه د خپل ژوند خیر غواړي.

که درست اسلامي امت د خپلو مجاهدو بچیانو سره اوګه په اوګه ودریږي، د غفلت له خوبه راببدار شي، نو لرې نه ده چې الله جل جلاله مسلمانانو ته بری ورکړي، اسلام حاکم شي، اسلامي حدو نافذ شي، امن، سوله، خوشحالي، پراخي او برکتونه رانازل شي، او اسلامي امت د خوشحالۍ ژوند پیل کړي، ور نه له دې پرته به اسلامي امت همداسې په امتحانونو او فتنو کې راښکیل وي او کفار به پرې خپلې ساعت تیرۍ کوي.

پای

د نړیوال اسلامي خلافت د قیام په هیله

★هر هغه څوك، چې د تکره سړي (مهرانی) په اس سپرېږي، او ټوپك یې تري کبر او غرور کړي ژر ده، چې په بدو ککړ شي او په کوم ګرنګ کې بهٔ یې یوه ورځ سرمات شي.

★: بد په هر ځای کې بد او ښه په هر ځای کې ښه وي.

★: څوك چې بدخویه شي نو هغه هېڅ اصول نه لري هو! کله چې حیاء پرېږدي نو څه دې چې خوښه وي کوه یې

(سعدي)

# د نارینه او ښځې د ګډ کار خطر

الشیخ بن عبدالعزیز بن عبدالله بن باز

ژباړه: عندلیب

بسم الله الرحمن الرحیم

**الحمد لله رب العلمین، و الصلاة و السلام علی رسوله الامین، و علی آله و صحبه اجمعین.**

**اما بعد:-**

د سړیو سره یو ځای ښځو ته، اشارتاً او یا په ښکاره توګه، په دې دلیل د کار کولو بلنه ورکول، چې د نارینه و سره د ښځو ګډ کار د وخت اړتیا او د تمدن له غوښتنو ده، خطرناکې، ترخې او ناوړه پایلې لري، سربېره پر دې دغه کار د هغو شرعي نصوصو سره هم په ټکر کې دی، چې ښځې ته په کور کې د اوسیدلو او کورنیو کارونو د تر سره کولو امر کوي.

که څوک غواړي له نژدې څخه هغه بې شمیره بربادۍ ووینې چې د ښځو او سړیو له ګډون رامنځته شوي، هغو ټولنو ته دې فکر وکړي، چې د خپل ضمیر په پریکړه په خپله خوښه، او یا د حق د نه شتون له امله د مجبوریت، اړتیا او اضطرار تر مخې په همدې ستره بدمرغۍ کې پرېوتي دي، نو په فردي او ټولنیزه کچه به د ښځو او سړیو د ګډ کار په وړاندې غوسه او شکایتونه په خپله ووینې، له کورونو څخه د ښځو پر تښتېدو، او د کورنۍ په شیندل کېدو خفګان به محسوس کړي، دا ځکه چې دغه کار د ټولنې نړېدل او د جوړې ودانۍ ویجاړول دي.

ډېر زیات دلایل شته چې نارینه ته د یوې پردۍ ښځې سره یوازې کېدل، کتل، او هغه وسایل چې انسان حرامو ته رهي کوي حرام بولي، په همدې دلایلو د نارینه او ښځو تر منځ اختلاط هم حرام دی، ځکه دغه کار داسې یو څه ته لار برابروي چې ناوړه پایلې لري.

د هغه کور څخه د ښځې ایستل، چې د هغې د ژوند اساسي پیل دی، د خپل فطرت او طبیعت څخه د ښځې د را ایستلو معنی لري، هغه فطرت او طبیعت چې الله پرې پیدا کړې ده.

د نارینه و ځانګړیو ډګرونو ته د ښځو راتللو ته بلنه، اسلامي ټولنې ته یو ستر ګواښ دی، یو له لویو اغیزو یې د نارینه او ښځو تر منځ اختلاط دی، چې د زنا له سترو لاملونو یو دی، او زنا ټولنه ټوټه ټوټه کوي، اخلاق او ارزښتونه یې نړوي.

څرګنده ده چې الله تعالی ښځې ته له سړي څخه یو بشپړ ځانګړی جوړښت ورکړی، داسې چې د خپل کور په داخل کې، او د نورو ښځو سره یو ځای کارونو تر سره کولو ته یې چمتو کړې ده.

د دې مطلب دا دی چې: د سړیو له پاره ځانګړې شوې ډګر ته د ښځې ننویستل د خپل طبیعي جوړښت څخه د ښځې ایستل دي. او دا له دې کبله د ښځې په حق کې یو ستر جرم دی، چې د هغې معنویات له منځه وړي، شخصیت یې ماتوي، او همدغه جرم په خپل وار سره راتلونکي نسل ته که ښځمنې وي او که نارینه وړانتقالیږي، نوی نسل له همدې امله، خواخوږي او مهرباني له لاسه ورکوي، ځکه هغه ثوک چې د تربیې، خواخوږۍ او مهربانۍ دنده تر سره کوي، یعنی (مور) له خپل بچي څخه جلا کیږي، په بشپړه توګه د خپل هغه مملکت او بادشاهۍ څخه ګوښه کیږي، چې له هغې پرته په بل هیڅ ځای کې ارام، ثبات او ډاډ نه شي موندلای.

اسلام دواړو (مېړه او مېرمنې ته) خپلې ځانګړې دندې ورسپارلې، هر یو یې باید تر سره کړي، څو کور په خپل داخل کې، او له کوره بهر د ټولنې جوړښت بشپړ شي.

سړی نفقه پیدا کوي او ګټه کوي، ښځه بچیان تربیه کوي، د عاطفي مهربانۍ او خواخوږۍ دنده تر سره کوي، اولادونو ته ورکوي، بچیان روزي، او پالنه یې کوي، او ځینې نور هغه کارونه تر سره کوي چې ورسره ښایي، لکه کوچنیانو ته زده کړه ورکول، د ماشومانو ښوونځي اداره کول، درملنه، رونځورپالنه، او داسې نور کارونه چې د ښځو پورې خاص دي.

نو که ښځه د کور کارونه پریږدي، کور او د کورنۍ غړي به له منځه ولاړ شي، په همدې ډول په حسي او معنوي توګه کورنۍ پاشل کیږي، چې دغه مهال به ټولنه شکلا او صورتا ټولنه وي؛ خو په حقیقت او معنی کې به ټولنه نه وي.

الله تعالی فرمایلي: (**الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنْفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ**) لکه چې د ایت کریمه څخه څرګندیږي، په مخلوق کې د الله تعالی قانون دا دی چې نارینه د ښځو حاکم او مشر دی، نارینه په ښځه برتري لري.

او ښځې ته په خپل کور کې د پاتې کېدو د امر، او سینګار څخه د منع کولو، معنی د سړیو او د ښځو د اختلاط څخه منع ده. اختلاط بیا څه دی؟

په یو ځای کې د پردیو ښځو سره د سړیو یو ځای کېدل اختلاط دی، چې یا د کار په سبب وي، یا د اخستلو خرڅولو، یا د چکر، سفر او داسې نورو، ځکه دې میدان ته په ننوتلو سره ښځه په منهیاتو کې پرېوزي، او د الله تعالی د اوامرو مخالفت کوي.

د الله جل جلاله کتاب او د رسول الله صلي الله علیه وسلم سنت د سړیو او ښځو د اختلاط او ټولو هغو وسائلو په حرمت دلالت کوي چې اختلاط ورڅخه رامنځته کیږي الله تعالی فرمایي (**وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَى فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا**)، الله تعالی امهات المؤمنین (د رسول الله بیبیانو) ته امر کړی- او په دې کې ټولې مسلمانې مېرمنې شاملې دي-چې په کورونو کې و اوسیږي، ځکه چې په دې توګه هغوی له فساد او د فساد له وسایلو ساتل کیږي، امکان لري چې له اړتیا پرته له کوره وتل، د تبرج (په زینت کې وتل) په ګډون نور ممنوعات رامنځته کړي، بیا یې هغوی ته د ښو کارونو امر کړی، او د بدو او فحشاء څخه یې منع کړې دي، چې دا کار په لمونځ کولو، زکات ورکولو، د الله او د هغه د رسول په اطاعت سره کیږي.

بیا یې هغه څه ته متوجه کړي چې هغوی ته په دنیا او اخرت کې ګټه رسوي او هغه دا چې د تل له پاره د قرآن کریم او رسول الله صلي الله علیه وسلم د سنتو

سره په اړیکه کې پاتې شي، قرآن او حدیث زړه صفا کوي، او انسان د حق پر لور رهي کوي.
الله تعالی فرمايي (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَنْ يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا) الله تعالی خپل پیغمبر صلي الله علیه وسلم ته امر کړی چې خپلو بیبیانو، لورګانو او د عامو مسلمانانو مېرمنو ته ووایي چې په خپلو مخونو څادرونه راخپاره کړي، او دا هغه مهال کله چې د کومې اړتیا له مخې هغوی له کوره د وتلو نیت لري، دغه امر له دې کبله شوی، چې ښځه د خېرنو زړونو له زیانه په امان وي.
کله چې موضوع دومره اهمیت لري؛ نو څه فکر کوئ، بیا به څه حال وي که دغه ښځه د سړي سره یو ډګر ته ښکته شي، د نارینه سره شریکه شي، هغوی ته خپلې اړتیاوې څرګندې کړي، او د دندې په نوم په دې دلیل چې د سړیو سره په یو کتار کې ودرېږي، د خپلو ښځینه چارو څخه لاس په سر شي، د ژوند ډېره برخه یې په دې هلو ځلو کې تېره شي چې د ښځو او سړیو تر منځ صورتاً او معناً توافق او همغاړیتوب رامنځته کړي؟
الله تعالی فرمايي (قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ)، په دې ایت کریمه کې الله تعالی خپل نبي علیه السلام ته امر کوي چې مؤمنانو ښځو او سړیو ته ورسوي چې سترګې دې ټیټې کړي، او خپلې شرمګاوې دې د زنا څخه وساتي، او بیا الله تعالی روښانه کړه چې دا کار د دوی له پاره ډېر پاکیزه دی.
نور بیا...

درې څیزونه له دریو پرته هېڅ پایښت نه لري:
۱: مال له سوداګرۍ. ۲: علم له بحث پرته او ۳: حکومت له سیاست څخه.

★★★

کوم راز، چې څرګندول نه غواړې، ملګري ته یې مه ښکاره کوه، ځکه چې د هغه به نور ملګري وي هغوی ته به یې ښکاره کړي، همداسې د هغوی نور...

★★★

د دوه دښمنانو په منځ کې په داسې بڼه خبرې کوه که چېرته دوی سره ملګري شي، چې ته یې په منځ کې مخ تور نه شې.

★★★

څوك چې د دښمنانو سره روغه (سوله) کړي د ملګرو د آزار خیال لري.

★★★

د دښمن نصیحت منل تیروتنه ده خو اوربدل یې ناوړه کار نه دی، ځکه چې په دې شکل به د هغه د خبرو په ضد کار وکولای شې او دا بیا ډېره ښه خبره ده.
سعدي

★★★

یوسي، د دیسمبر په میاشت کې د روسي فوځ درې غونډونو چې دېرش الوتکې، شل ټانکونه او پنځوس زغروال موټر په کې وو، د ایلي او شوشک له لارې حرکت پیل کړ.
خبرونه خواشینوونکي وو، خلک یې په زیات تشویش کې کړل، ځکه موږ سره دومره ځواک نه وو چې د روسیې ناڅاپي فوځي مخکې تگ مات کړي، خواجه نیاز وویل:
پرون جنگېدو.
جنرال شریف خان د پوښتنې په دود ځواب ورکړ:
او نن؟
زموږ جگړه یو ډول زړورتیا ده.
بیا یې جنرال ته مخ کړ او ورته یې وویل:
خو ملگری جنراله! بیا هم د جگړې بدیل شته؟
زه د سیاست په نوم څه نه پېژنم، تجربو را ښودلې چې موږ ته یوائنی راپاتې طریقه جگړه ده، او دا گرانه ده چې دښمن دې تسلیم شي، مگر دا چې په جگړه کې مات کړای شي.
خواجه نیاز په داسې حال کې چې کتل یې الوتکې انقلابیان بمباروي، وویل:
بیا نو تر پایه جگړې ته دوام ورکوو.
په همدومره موده کې، روسیې په ټولو چارو لکه عسکري، سوداگریزو، سیاسي او نورو کې متخصصین واستول، د نوي چینایي حاکم د دوه لوړ پوړو سلاکارانو له جملې یو روسی ظابط و.
دا روسي یو خبیث چالاکه او ځیرک انسان و، چې د هغه نقشو او رایو ته په سپک نظر نه شول کتل کېدای، د چینایي حاکم سره یې وکتل او ورته یې وویل؟
زما په ذهن کې دجگړې له پاره یو انځور شته، که موږ یې په عملي کولو بریالي شو؛ نو ډېر څه به تر لاسه کړو.
حاکم وویل:
څه ډول؟
زموږ سره د ختځ ترکستان د خلکو د بېلتون غوښتونکو یوه غټه ډله شته، چې موږ پرې بشپړ باور کولای شو، او موږ کولای شو له هغوی مرسته واخلو، هغوی د حکومت د اداري او عسکري ماشین په سر کې وگومارو، په دې سره به داسې ځرگندېږي لکه جگړه چې د خواجه نیاز د ډلې او بېلتون غوښتونکو تر منځ وي.
حاکم دا نظر ومنلو، سمدستي بېلتون غوښتونکي چې اصلي ترکستانیان وو راټول شول، یو یې د استخباراتو مشر وټاکل شو، چې دغه استخبارات د المان د پټو پولیسو په څېر وو، هغه له عامو خلکو د غچ اخستلو او ځورولو په برخه کې خورا بد رول ولوبولو، دغه راز د استخباراتو د اداري له پاره په نورو ښارونو کې هم ځانگې جوړې کړای شوی.
موږ په خپل ټول قوت جنگېدلو، جگړه په ټوله معنی سخته وه، جگړه یوائې دا نه وه چې د الوتکو، ټانگونو، او زغروالو موټرو مرمی زموږ د شهیدانو په بدنونو کې ننوتلې، بلکې هلته یوه بله بې ارزښته جگړه هم روانه وه، وروسته له دې چې بېلتون غوښتونکو په یو ښار کې د چارو واگې په لاس کې واخستل، او موږ له ارومچې شاتگ وکړ، د یوې نا اشنا محاکمې خبر مو واورېد، زما ملگری منصور درغا بندي شو، خو لږه موده وروسته په تېښته بریالی شو، هغه موږ ته عجیبه کیسې وکړې، منصور درغا د استخباراتو مرکز (ج.ب.او) ته بوتلل شو، هغه ورته ویلي و:
زه د غره سړی یم، په جنگ نه پوهېږم، نه لوستل کولای شم او نه لیکل، انقلابیانو زما له خوښې پرته زما څاروي او پسونه ټول واخستل، بیا تاسې ونیولم، زه بې گناه یم او هېڅ په جنگ نه پوهېږم.
د استخباراتو مرکز د جهنم په څېر ښکارېدو، د استخباراتو مشر په خپله ولاړ ؤ، هر څه یې ځارل او چارې یې پر مخ وړلې، او ویل به یې:
ای خاینو افسرانو! تاسو څنگه د متخلف خاین جواجه نیاز په صف کې جنگېږئ، ایا نه پوهېږئ چې هغه ستاسو مالونه غلا کړل او له تاسو یې د ملیونونو په ارزښت شتمني پټه کړه؟ ایا نه پوهېږئ چې هغه په تاسو سوداگري کوي، هغه ځمکې لري، ښځې لري او سره زر لري؟ رسوایيو ته یې وگورئ.

# د ترکستان شپې

## په زړه پورې تاریخي ناول

ډاکټر نجیب الکیلاني : ژباړه: سید جمال

د تیرې برخې پای

زه بـه شـپه دوه شـپې پـه قومـول کـې پـاتې شـم، او بیـا بـه اورومجي ته ولاړ شم، او ستاسو سره له دوه اونیو وړاندې نه شم یو ځای کېدی.

د منصور سره مې خدای پاماني وکړه او د قومول په کوڅو کې سرګردانه روان شوم!!.

د هرڅه سره بیا هم مونږ یو کوچنی دولت و، چې دوه سترو دولتونو چین او روس سره مو مخه وه، خو ایا مونږ ته روا وه چې د کوچنیوالي په دلیل اشغالګرو ته خپلې دروازې پرانیزو؟ او هغه ارزښتناک څیز بد وکاروو چې الله جل جلالــه راکـړی؟ جګـړه دې یـوه میاشـت روانـه وي، دوه میاشتې، یو کال او چې څنګه د الله خوښه وي هغسې دې اوږده شي، مونږ به د ټول عمر له پاره جنګیالي یو، همدا زمونږ برخه لیک دی، مونږ په دې لږ کې هېڅ بله لار نه لرو،

خواجه نیاز شا او خوا وکتل او ویې ویل:

جګړې هر څه خرابه کړي.

جنرال شریف خان چې یو سخت او متشدد سړی و، بس داسې لکه الله چې جنګیالی پیدا کړی وي، وویل:

مهمه دا ده چې د جګړې لـه کبلـه مو په الله او ځان باور خرابه نه شي.

د قدر وړ رئیسه! دلته او هلته لوږې دي، قیمتونه هم خورا لوړ دي، په هره سیمه نا ارامي خپره ده.

جنرال شریف خان هغه ته وکتل او ویې وویل:

زما سره یوه رایه ده، هغه دا چې مونږ اورومجي ته د یوې ماتې ورکوونکې جګړې سره ننوځو.

همداسې باید وکړو.

چې یا مړه شو او یا په اورومجي او ایلي بشپړه سلطه ټینګه کړو.

همـدا مهـال د چینـایي واکمـن او روسـیې تـر منځ پـه دې موضوع خبرې روانې وې، چې د انقلابیانو د ځپلو له پاره پوره ځواکونه واستوي، خو په حقیقت کې روسیز پـه دې چینـایي واکمـن بـاور نـه درلـود، لـه همـدې کبلـه روسـي ځواکونـه پـه تېـزۍ سـره وخوځېـدل، او د هغـه چینـایي ځواکونو په اوښتون کې یې برخه واخیسته چې د چینایي پوځ یو قوماندان یې مشري پـه غـاړه درلـوده، اوښـتون بریالی شو او حاکم چین تـه وتښـتېد، ټـول واک د چینـایي قوماندان په لاس کې شو، او د «د پیل او مصلحت اتحاد» په نوم د چینایي قوماندان او روسیې تر منځ نوی تړون وشو، چینایي قوماندان ژمنه وکړه چې له ختیځ ترکستانه به خام مواد راټولوي، او روسیې تـه بـه یې استوي، د دې پـه مقابـل کـې روس د هغـه سره د سړیو او وسلې مرسته وکړه څو محاصره ماته او نوی زېږېدلی جمهوریت له منځه

د هغوی په مخ کې یې ځینې جعلي چاپ شوي شیان، درواغ شمېرې، او له ځانه جوړ شوي انځورونه وغوړول، دغه راز یې د جنرال شریف خان او نورو غټو قوماندانو په اړه هم همداسې وکړل. کله یې چې په خپلو درواغو د هغوی معنوي روح ویجاړ کړ، خپلو ملګرو ته یې اشاره وکړه، او هغوی یو ځل بیا د دوزخي الو او ناوړه وسائلو په مرسته په تعذیب او شکنجه پیل وکړ. هغوی مسکینانو ژړل او چغې یې وهلې، یا به چوپه خوله مړه کېدل. غلط اعترافات اخستل کېدل. او بې ګناه خلکو به پرې په زور لاسلیکونه کول. بیا به په (سینکیانګ) ورځپاڼه کې خپرېدل. دې خاینانو ورې ورې رسالې لیکلې وې، او یا به د کوم بل هېواد استخباراتي کړیو جوړې کړې وې، ترکستاني نومونه به یې پرې لیکلي وو. بس د جګړې سېمه پراخه شوې وه، ګڼ اړخونه یې خپل کړي وو. خو پاخون کوونکي تر مرګه په جګړه اخته وو.

هغه ورځ هم راغله چې زه یې په ټول عمر کې نه شم هېرولای.

آه. کاشکې تر هغه وخته ژوندی نه وای چې دا ورځ مې ولیده، جګړه ګرمه شوه، بیلتون غوښتونکي خاینانان او دښمنان له هر لوري راغلل. جګړه خونړۍ وه، خواجه نیاز شا او خوا وکتل او ویې ویل:

ورونو زموږ امانت یواځې او یواځې شهادت دی.

جنرال شریف خان په جګړه کې مشغول و. مخ یې په وینو او خاورو لړلی و. الوتکو او ټانګونو اورونه ورول، مړو لاره بنده کړې وه. د وینو بوی هوا ډکه کړې وه. شریف خان غلي وویل:

داسې ښکاري چې دا ځل مو جګړه بایلوده.

خواجه نیاز وویل:

باید بل ځای ته په شا شو.

دښمنان زیات شول. او موږ په غیر منظم شاتګ او نا منسبه جګړه کې د خطرونو سره مخ کېدو. زه په یوه لوړه او سخته غونډۍ وختلم. نه پوهېدم چې په ښنو او لاسونو کې مې څومره اغزي ننوتلي دي. د ستړیا له کبله سېږدم او د غونډۍ په سر ودرېدم. لرې لرې مې وکتل او له ځانه سره مې وویل: ای الله! خواجه نیاز، جنرال شریف او نور د دښمن په لاس کې پرېوتل. د استخباراتو او یا تحقیق مرکز ته یوړل شول.

هېله مندي له منځه ولاړه، زما شا او خوا هر څه مړه کېدل. مېنه، هېله، برې، دا هر څه داسې مړه شول څه ډول چې پرون نجمة اللیل زما په زړه کې مړه شوه. نژدې ده چې د مبارزې ورځې ولاړې شي او یواځې یاد یې پاتې شي. لکه د منصور درغا د یاد په څېر، چې پټ شو او زه ورڅخه هېڅ نه وم خبر. زه د ختیځ ترکستان په هغو زامنو وردرېدم چې جلا شول. او د ټول ځواک په مټ. د نورو په بنده ګۍ کې. په سختۍ او ملنډو سره د انقلابیانو پر ضد ودرېدل. زما پر زړه تر ټولو سخته دا وه چې د خپل ښار یو غوښن او خندانه سترګې اوسیدونکی وینم. چې لوړ لوړ اوازونه باسي. خپل ورونه یې د پسونو په څېر روان کړي، او د هغوی سره د څارویو په څېر چلند کوي.

کېدای شي هغه څه چې خواجه نیاز او جنرال شریف خان ته پېښ شول د ډېرې مودې لپاره یو راز پاتې شي. ځکه دوی دواړه او نور یې یو ناڅرګند ځای ته بوتلل. یوې ژورې څاه ته چې هېڅوک هم ورڅخه خبر نه دي. خواجه نیاز او جنرال شریف خان څنګ په څنګ د استخباراتو په مرکز کې ودرول شول. د خواجه نیاز زړې جامې په تن وې او مخ یې څېرې شوې و. تحقیقات خورا سخت او نادر وو. د خواجه نیاز سترګې سرې او کمزورې و. د استخباراتو مدیر چغه کړه:

په خپل خیانت اقرار نه کوې؟

خواجه نیاز په خندا شو. نژدې وه له سترګو یې وینې وڅڅېږي، او ورته یې وویل:

او ته؟

زه څه ؟

زه خاین یم او که ته؟

د استخباراتو رئیس جمهور رئیس ته یوه کلکه څپېړه ورکړه. خواجه نیاز خپل تړلي لاسونه په زوره او د ملنډو په ډول ولړزول او ویې ویل:

ډېر ځله د چا خوښه نه وي خو مچ یې په پوزه کېني.

حقیقت وو ایه.
خواجه نیاز یو ځل بیا په خندا شو او ویې ویل:
حقیقت څرګند دی، د هغو خلکو په لاسونو کې زولنې پرتې دي چې د خپلې خپلواکۍ او شرف ساتنه یې غوښته، د چارو واګې، قمچینې، او د ستر زندان کیلي ګانې د خاینانو او پلیتانو په لاسونو کې دي، یو بل حقیقت چې ماته معلوم دی، دا دی چې زه به مرم، له همدې کبله زه په تا لیارې تو کوم.
د استخباراتو رئیس ته یې له سکروټو په ډک نظر وکتل او زیاته یې کړه:
او زما د جسد ارزښت به څه وي، روح خو هلته د غرونو په څوکو ځورند دی، ځکه چې هغه نه مري.
د ورځپاڼې لیکونکي مداخله وکړه، قلم او پاڼه یې په لاس کې او پوښتنه یې وکړه:
روح څه معنا خواجه نیازه؟
خواجه نیاز هغه ته وکتل، هغه یې پېژانده:
ایا ته دې په خپله ورځپاڼه کې د بودا او کونفشیوس له تعلیماتو څه نه خپروې؟
سمه ده، روح زما د رب له امره دی.
د استخباراتو مدیر ځواب ورکړ:
دا د وروسته پاتې خلکو ناسمه فلسفه ده.
نیاز مسک شو او له ځان سره یې د قرآن کریم دا ایتونه وویل:
قال الأولون من الکافرین: لا یهلکنا إلا الدهر.
مدیر د خواجه نیاز په غوږ کې پټ وویل:
ته باید په دې اعتراف وکړې، چې ټول ملت تا دهوکه کړی.
خواجه نیاز وویل:
ته باید په دې اعتراف وکړې چې د ملت پر ضد دې دسیسه جوړه کړې، هغه ملت چې ماته یې د واکمنۍ امانت راکړ، او د خپلې ازادۍ په لار کې یې په مېړانه جګړه وکړه.
.مدیر وویل:
ته باید په غلا کړو مالونو هم اعتراف وکړې.
خواجه نیاز:
زه ځانګړې شتمنۍ نه لرم، ما د زړورو جنګیالیو سره خوراک څښاک کولو، او د هغوی سره بېدېدم.
مدیر:
ته د یو جنګي مجرم په څېر محاکمه کېږې.
دا زما لپاره شرف دی چې د اشغالګرو د شړلو له پاره جګړه وکړم، زه جنګي مجرم نه، بلکې د الله د لارې مجاهد یم.
قوماندان وویل:
لمړی باید اسلام له منځه یوړل شي، بیا به ټول مقاومت ټوټه ټوټه شي.
ظاهره ده.
د استخباراتو مدیر خپلې پاڼې راټولې کړې او ویې ویل:
ستا اعتراف ته اړتیا نه شته، ته د جرم په حال کې د جګړې له میدانه نیول شوی یې.
خواجه نیاز وویل:
له ما یې په ټول ویاړ سره ثبت کړه چې زه په شا شوی نه یم، او زما هیله همدا وه چې شهید مړ شم.
جنرال شریف خان مداخله وکړه او د استخباراتو مدیر ته یې وویل:
که ته زما د لښکر سرتېری وې، نو د یو خځنده په څېر به مې د پښو لاندې کړی وې.
د استخباراتو مدیر ورته په قهرجن نظر وکتل او ویې ویل:
ستا غرغره کول بس نه دي، ته باید ټوټه ټوټه وشکول شې، او بیا دې غوښه پیشوګانو ته واچول شي.
منصور درغا هم په همدې ځای کې بندي و، هر څه یې په خپلو سترګو ولیدل، هغه هم د عذاب او سپکاوي جامونه په سر اړولي وو، خو له مرګه په عجیبه ډول خلاص شوی و، د اګست د میاشتې په یوه شپه کې د استخباراتو د مرکز سره نژدې چاودنه شوې وه، چې وبره یې خپره کړې وه، په زندان کې یې یو غټ سوری جوړ کړی و، او درې بندیانو ته یې د تیښتې فرصت په لاس ورکړی و، منصور درغا په تېښته بریالی شوی و، خو دوه ملګري یې په مرمیو ویشتل شوي او وژل شوي وو، زه د منصور درغا

سره يو کال وروسته مخ شوم، د کوچي شپون په جامه کې پټ شوی و، جامې يې زړې او خېرنې وې او ځان يې ناپوهه او بېړا ښوده.
په دې سختو ورځو کې، دښمن د خلکو د ژوند، د ښارونو د امنيت او شتمنيو سره لوبې وکړې، هر سپيڅلي او ارزښتناک يې سپک استعمال کړ، منصور درغا وويل:
فکر وکړه، ان تر دې چې دوی ښځينه څاروي هم له ترکستانه خپل هيواد ته استوي، څو يې په ترکستان کې نسل زيات نه شي.
ما په ترخه او غمجنه لهجه وويل:
بيخي داسې لکه پرون يې چې ښځې په خپل واک کې واخيستې.
تورونه پورې کېدل، دا هم بس وه چې د يو بې ګناه پورې تهمت ونښلي او په ګناه يې ټول خپلوان ونيول شي، ټول هېواد د دې له پاره تر کلکې محاصرې لاندې و، چې خواشينوونکي خبرونه بهر ونه ووځي، په هر ځای تشويش خپور و، وېره خپره وه، په هيواد مين سړي نه شول کولای په ازادۍ د خپل اولاد سره خبرې وکړي، دښمن په دې بريالی شو چې د ترکستان نيمايي کورونه خپل جاسوسان کړي، ګاونډي په خپل ګاونډي باور نه شو کولای، د دولت له درې برخو زيات مامورين جاسوسان شول، د پوځ، زده کوونکو، کليوالو، مامورينو له نيمايي زياتو خلکو به د عامو استخباراتو له مرکزه د تنخواګانو غوښتنه کوله، ځينو به د دې وېرې له کبله جاسوسي کوله چې زندانې نه شي، يا يې کوم زوی ونه تښتول شي، او يا يې لور ونه نيول شي.
په ځينو خلکو لګيدلي تورونه خورا نا اشنا او حيرانوونکي و، کوم زده کوونکی به په دې دليل نيول کېده، چې د کودتا نيت لري، کوم مزدور کار به له دې کبله تحقيق ته بوتلل کېده او شکنجه کېده، چې نظريات يې د هيواد امنيت ته زيان رسوي، کوم مفکر به په دې تور بندي کېده چې د کوم بهرني هيواد لپاره کار کوي، ..
او خدايه!!!!!!
کله چې هم دا ټولې سختۍ را په زړه کوم داسې فکر کوم چې دا هر څه يوازې يو ډاروونکی خوب و، چې د حقيقت هېڅ سيوری نه لري، نو دا څنګه ومنم چې سل زره تنه په بېلا بېلو طريقو وژل کيږي، شا او خوا نيم ميليون نور زندانونو ته اچول کيږي، د ديني علماو سره د مرګ تر بريده ناروا سلوک کيږي، ديني او تاريخي کتابونه شکول کيږي، له مسجدونو زېرمتونونه او نندارځايونه جوړيږي، هغوی نوي ځوانان تر لاسه کړل، څو هغه څه وروښيي چې تاريخ او شخصيت يې له منځه يوسي، او د اشغال په توپان کې ويلې شي.
***
(۸)
آه! د قومول ښاره! تا څومره نادودې او بدبختۍ وليدې، کله چې د قومول د چينايي امير دا کوښښ ناکام شو چې اميره تر لاسه کړي، د علماؤ غوغا را وپارېده او پاڅون پيل شو، د قومول نوم په هره ژبه وغورځېد، د دې ښار نوم د انکار او ټينګار يو رمز او راز و، قومول د عزت او انکار يوه بېلګه وه، سړي به دې ښار ته د منسوبېدو له کبله وياړېدل، ښارونه بيخي د پلرونو په څېر دي، کله د نسب او حسب څښتنان وي، او کله تر ټولو سپک مخلوق وي، او يا د هغه مخلوق په څېر چې هېڅ ارزښت نه لري، خو دې کار دوام ونه کړ، او قومول د غچ سره مخ شو، د امير ماڼۍ د مرميو، کېنې او غچ اخيستلو هدف و، اميره په خپله ماڼۍ کې وه، د کورنۍ ځنې غړي هم ورسره وو، نجمة الليل هم لا همدلته اوسېده.
حاکمه کورنۍ د تېښتې په حال کې وه، خو چينايي افسر په ماڼۍ بريد وکړ، د هغه سره څو تنه سرتيري وو، ماڼۍ ته ايستلې توره ننوت، تر هر څه وړاندې يې په يوې ښکلې پېغلې سترګې ولګېدې، چې يو سور ګلاب يې بويولو او ګلاب يې د اننګيو سره لوبې کولې، نجمة الليل خندل او افسر ته يې په ذو معنی نظر کتل، مخکې تر دې چې افسر څه ووايي له نجمة الليل يې واوريدل چې ويل يې:
موږ په زور نه اخستل کېږو، او زه زړور خلک خوښوم، خو له جلادانو او سخت زړو کرکه کوم.
هغه ورته په حيرانتيا وکتل، د هغې د خبرو څه معنی ده؟

خو اول باید دا معلومه شي چي دا څوک ده؟ بې شکه چې
ښایسته ده، چي څومره يې ورکتل لېوالتيا يې زياتېده،
خو هغه په هېڅا هم باور نه درلود، د الله په ټول مخلوق
شکمن و، دا يې خوښول چي هر څه په زور او سختۍ سره
تر لاسه کړي، ايا يو جنګيالی نه و؟ بريالی نه و؟ او دې
مسلمانانو خو د چينايانو سره واده هم نه کاوه، له همدې
کبله يې پاڅون هم وکړ، نجمة الليل بيا وويل:
که په زور دې واخستم نو نيکمرغي به ونه وينې، افسر
ورنږدې شو، وسله يې ښکته کړه او ويې ويل:
له خبرو دې ښکاري چي ته له يوې لنډې ناستې او يو جام
شربته انکار نه کوې؟
اننګي يې ګلابي شول او ويې ويل:
ولې نه بې شرمه؟ خو زه ستا له سړيو شرمېږم.
هغوی به بهر انتظار کړم.
نجمة الليل په بې زارۍ سره وويل:
ای خدايه! هغه عاشقان به څنګه خوشحاله شي چې د نورو
سترګې يې څاري، يا لږ تر لږه په دې خبر وي چي څوک يې
انتظار کوي، نه....نه....لرې دې لاړ شي، ښه لرې.
په ماڼۍ کې ځينې خلک شته چي زموږ په کار دي.
زه د ماڼۍ مېرمن يم، او اوس ستا د لاس لاندې يم.
دا خبره يې په داسې حال کې وکړه چي په سترګو يې
اشارې هم کولې، افسر خپلو سړيو ته امر وکړ چې خپلو
مورچلو ته ستانه شي، هغوی يې په سمدستي تګ قانع
کړل او د نجمة اليل خوا ته راغلو.
ډېر ښه، ستا ښايست د سړي عقل وړي.
لاس رانه وړې، لږ وخت راکړه څو خوشبويي ووهم، او
شربت راوړم.
نجمة الليل په منډه ننوتله، اميره، مور يې، خوېندې يې
او نور خادمان په سخت تشويش کې وو، شپه د خپل تور
مخ سره په قومول راختلې وه، په قومول کې ډار خپور و،
نجمة الليل د کورنۍ غړو ته وويل:
مخکې تر دې چې د چينايانو په لاس بنديان شئ، همدا
اوس بايد ولاړ شئ، زه به افسر وغولوم او تاسې له شاتنۍ
دروازې ووځئ، د غر لور ته ولاړ شئ، چمتو کړې بګۍ په
انتظار ده، او سړي به د تېښتې لار ساتي، پام کوئ چې
په کومه ننښته کې ښکېل نه شئ، که هره ننښته رامنځته
شوه نو دښمنان به درباندې راټول کاندي، بيا به يا خپل
ژوند له لاسه ورکوئ او يا ابرو، زه چمتو يم چې خپل ځان
ستاسې لپاره قرباني کړم، وخت بې ځايه مه تېروئ، افسر
په کوټه کې دی، زه شربت وروړم، او تاسې درځئ.
اوښکې راروانې شوې، د خدای پامانۍ توري د افسوس
او سلګيو سره ګډ شول، نجمة الليل راستنه شوه، اوښکې
يې لا په اننګيو ننښتې وې، خو بيا هم هغې ځنې بې شرمه
چينايي سندرې ويلې، چې يو څو بيتونه يې له يوې زړې
چينايي خادمې زده کړي وو، په لاسونو کې يې د شربت
پيالې وې، کله يې چې افسر ته يوه پياله ورکړه، هغه ورته
په شک وکتل، بيا يې پياله په خپل دروند لاس ووهله، په
داسې حال کې چې نجمة الليل يې ووېروله، او په زړه يې
ډار ننوت، د مخ رنګ يې والوت او ويې ويل:
لمړۍ به زه وڅکم، خو د ماڼۍ په تاريخ کې څوک هم په
زهرو نه دی مړ شوی، دلته سړي او ښځې يوا ځې په تورو
جنګېږي.
افسر ورنږدې شو او سينې ته يې جوخته کړه، هغې په
نرمۍ سره لرې کړ او ويې ويل:
ډېر څه دې له لاسه ورکړل.
افسر يې په مطلب پوه شو، سمدستي يې ورته ووېلې:
زه پښېمانه يم.
اوس وخت تېر شوی.
څه مطلب؟
نجمة الليل له الله پرته له بل هېچا نه وېرېږي.
تر هر څه مخکې خو موږ د مينې په تار تړلي يو.
شک مينه وژني چينايي افسره!
حالات ماته د احتياط لارښوونه کوي، دې ډلو زموږ ډېر
سړي ووژل، او زه ستا سره مينه کوم.
نجمة الليل نېغه ودرېده او په زړورتيا يې وويل:
نن شپه دې نه غواړم.
عجيبه ده! هغه به د ځان سره يوا ځې همدا ويل، هغه
کولای شول چې له طلايي څڼو يې ونيسي، د خپلو غټو

بوټانو لاندې یې واچوي، او چې څه غواړي پرې ویې کړي، خو زړه یې نه منل، هغه د نجمة اللیل چلند، ساده او ترنده ښایست، ځرګندو او د پام وړ تورو په غېږه کې اخستی و.
نجمة الیل زه درسره مېنه کوم، تر هغه نه ځم چې تا له ما خپله خوښې نه وي ځرګنده کړې.
په داسې حال کې چې هغه ته یې شا کړې او دننه روانه وه، ویې ویل:
کولای شې د ځټ له اړخه پر ما ګولۍ وچلوې، زه تاسې پېژنم، خو زه ځم څو په خپله خونه کې ارام وکړم.
هغه په زاریو وویل:
زما ګرانې امېرې.
هغې وروکتل او په سختو ټکو یې وویل:
زه امیره نه یم، بې چاره امېره خو یوه وړه ماشومه ده، د بېربدلې پیشو په څېر غره ته وتښتېدله، په حقیقت کې زه مشره خادمه یم، او که ته غواړې نو بیا زه د مانۍ مالکه یم، امیر، مېرمن یې او د کورنۍ نورو غړو به زما امر منلو، اوس پوهه شوې چې زه څوک یم؟
د هغوی خبرې اورېدې شوې، تر دې چې نجمة اللیل ډاډه شوه چې د امیرې کاروان د غره په لور له مانۍ په تېښته ووت، پلان یې بریالی شو، د مانۍ او د اوسېدونکو په حق کې یې خپله دنده اداء کړه، اوس یې کولای شول چې په ازادۍ سره ولاړه شي.
هر لور غمېزو، له جګړې وورسته د ارزښتونو پایمال کېدو، د حکومت ړنګېدو او درېدو، د حاکمانو بدلېدلو، بریالیتوبونو او ماتو، د اوښکو، خولو او عذابونو شپو د هغې ژوند سترې او تنګ کړی و، امیر ولاړ او بیا را ستون نه شو، مصطفی مراد حضرت هم ولاړ، او را ستون نه شو، ټوله نړۍ د حیواناتو شوه، بس منډې دي، خولې لګول دي او وینې رودل دي، ناوړه کارونه تر سره کیږي، خو هغې دې هېڅ ته نه کتل، د امېرې خونې ته لاړه، هغه خونه چې په ښایسته او ښکلو سامانونو ډکه وه، بیا د امیرې په کټ پر مخې وغزېده او د نا امیدۍ اوسیلې یې وکښل، سره سیورې په دیوالونو ګډېدل، او طلایي وړانګو زېړه زېړه ځلا کوله، هغه دیو د سپي په څېر په دروازه کې ولاړ و، ځکه چې نجمة اللیل د هغه احساسات او جذبات سوځولي و.
زه رانتوتلای شم؟
دروازه له باندې نه بنده کړه!
او بې له دې چې په ځان پوه شي د هغې د امرونو په عملي کولو یې پیل وکړ، کله چې له دروازې بهر یوا ځې پاتې شو ډېر حیران شو، په یو وخت کې د خجالت او مستۍ دواړو سره مخ شو، بیا یې دروازه پرانیسته، او د غوبي په څېر په غوسه او ورو ورو د ننه روان شو، هغې ورته توجه ونه کړه، هغه یې لاس ونیو خو دې ترې په کراره را کش کړ:
نن شپه دې نه غواړم.
نو چرته ولاړ شم؟
مانۍ ستاسو شوه، کولای شې په هره خونه کې دې چې خوښه وې واوسېږې.
او ته؟
راپاځېده او ویې ویل:
ته ماته د یو ختمېدونکي خوند په سترګه ګورې؟
هغه نه پوهېدو چې څه ځواب ورکړي.
سمه ده که غواړې چې واده راسره وکړې ..نو.....
دا مهال غلې شوه خو هغه ورته په حیرانتیا سره وکتل او ویې ویل:
نو څنګه؟
دا چې ته به زما په دین وې.
ستا دین څه دې؟
اسلام
نور بیا...

# د الله لښکرې د الله په ځمکه




د بورما مجاهدین

دهیواد او نړۍ له ګرمو سنګرونو تازه
خبرونه ، دیني او سیاسي لیکنې ، کورني او
نړیوال جهادي فلمونه ، پښتو او عربي ترانې
زموږ په ویب سایټ کې کتلای شي .

www.toorabora.net



د یمن مجاهدین



د مالي مجاهدین




دعراق مجاهدین



د صومالیا مجاهدین

مرحوم شهید سردارخان د کلاشینکوف نه نیولې بیا تر هاوان ، چهل ، بې ام ۱۲ مسلکي استاد هم پاتې شوی و، په جلال آباد کې خویې د کمونیستا نو خوبونه ورحرام کړي وو ، د جلال آباد له فتحې وروسته یې د همدې ولایت په څلورمه لیوا کې د نده اجراء کوله ، د اسلامی امارت په راتګ سره نوموړی په ( قطعه منتظره ) کې د ډلګي مشر په حیث د هیواد په بیلابیلو سیمو کې د اسلامی امارت دمخالفینو په خلاف وجنګیده ، د بنې سابقې له مخې نوموړی د خوست د مجاهدینو لخوا د ننګرهار ولایت مقام ته د یو ښه متقي او میړني مجاهد په حیث ورمعرفي شو، د اسلامی امارت د مخالفینو پر ضد یې خپله مبارزه جاري وساتله ، د دې مبارزې په لړ کې د هیواد په بیلابیلو سیمو لکه کنړ، لغمان ، کابل ، پروان ، کاپیسا او ځینې شمالي ولایاتو کې په عملیاتو کې شریک شوی و.

د صلیبي یرغل په وخت کې یې په توره بوره کې محاصره عربو مجاهدینو سره ډیره مرسته کوله ، شپه او ورځ به د عربو مجاهدینو په خدمت بوخت و، دا حالت واقعاً ډیر سخت و، خو مرحوم شهید سردارخان د اسلام او جهاد په مینه مست له د نیاوي تکالیفو بې پروا د خپلو عربو مجاهدینو ورونو سره یوځای و، دوی ته به یې خوراک، څښاک او پوښاک برابرول ، په همدې تور د کابل ګوډاګی ادارې ته هم مطلوب و.

